تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة في حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابوالعزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ رحمہ اللہ

محرر و مرتب

سید محمد ثواب

ابن سید اسماعیل باچا صاحب

اولہ حصہ

ناشر

مدرسہ حدیقۃ الاحناف

## مسئلة الدعاء بعد السنة :

أعوذبالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم: ﴿ وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي وَلْيُؤْمِنُوا بِي لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ ﴾ ( البقرة آيت : ۱۸۶)

بله مسئله متنازع فيها بيننا و بين المنكرين مسئله د دعاء بعد السنة ده او بله وړه جزئيه د عاء بعد الجنازة ده ددې دواړو مينځ کې به ضمني ضمني فاتحه خواني او د مړي په کور کې مړي ته دعاء کول مخکې د صلوة الجنازة نه هغه به هم ثابت شي .

مخکې له دې نه چې په خپلو مباحثو کې شروع وکړم ، نو ستاسو د ذهن خلاصولو لپاره دغه تفصيل ذکر کومه چې کومو ځيزونو کې د بدعت د راتلو امکان شته او کومو ځيزونو کې بدعت نه شي راتلې .

او که راشي هغه بدعت مذمومه نه دي زمونږ او ستاسو اصولين مأمور به لره دوه معروف قسمونه ذکر کوي چې يوه مأمور به مؤقته ده او بله مأمور به مطلقه عن الوقت ده کومه مأمور به چې مطلق عن الوقت وي هلته توقيت د شارع نه ، نه وي چې شارع توقيت نه دي کړې نو توقيت تعين او تعين د توقيت دلته لازم شو په مکلف باندې او کوم چې مأمور به موقته ده هغلته يو طرف ته امر شوې وي .

ثانياً د امر د تعميل او د امتثال وقت متعين وي په شرعه کې که مکلف له ځان نه دغې مأمور به مؤقتې ته وخت وټاکي نو بدعت لازم شي ځکه کون غير شارع شارع شي اصلاً د بدعاتو د قباحت د ذم او رد لويه وجه داده چې په بدعاتو کې کون غير شارع شارع ګرځيږي دې امت باندې د ځيزونو لازمولو والاذات اله العالمين دي يا محمد مصطفى ﷺ چې دواړه شارعين دي بل هيچا ته ددې اختيار نشته دي چې هغه په امت باندې قوانين لازم کړي نو دا الزام د ما لم يلزم چې فقهاء بدعت ګڼي.

ددې وجه هم داده چې غير شارع شارع ګرځيږي په غير باندې يوه خبره لازمول دا حق د شارع وه او دغه غير شارع نه دي دا حق ددې نه لري چې په چا باندې څه ځيزونه لازم کړي ولو که هغه شيخ د طريقت وي په مريدانو باندې څه ځيز لازمولې نه شي بدون د تعين د شارع نه .

که اسباق ورته ورکوي نو دا به درجه د وجوب نه وي مستحب به یې ګڼي په دې به د خپل مرید ذهن خلاصوي او مرید چې په هغې دوام امتثال کوي نو په مستحباتو باندې دوام ممنوع نه دی خو عقیده به یې دا نه وي چې دا امر لازم دی نو یو مأمور به موقته شوه.

او بل مأمور به مطلق عن الوقت مأمور به موقته هلته توقیت د شارع نه وي که مکلف بنده ځان نه وخت وټاکي نو غیر شارع به شارع وګرځیږي د قباحت د ذم د علت چې کوم علت دی هغه به مینځ ته راشي.

او کوم چې مطلق عن الوقت ده هغلته توقیتات او تعینات په مکلف وي مثال د پاره مأمور به مطلق عن الوقت لکه تلاوت القرآن، تلاوت القرآن د مأموراتو نه دی: ﴿فَاقْرَؤُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ کې امر پرې شوې دې توقیت دلته د شارع نه نشته.

نو چې هر کله د شارع نه تعین د وخت نشته نو تعین د وخت د مکلف او ممتثل کار شو چې څوک کله هم تلاوت کوي د کومې سپارې کوي د کوم سورت کوي دې کې بدعت نه لازمیږي که څوک په یو وخت کې تلاوت شروع کړي او د هرې سپارې شروع کړي نو دا به ممتثل د ﴿فَاقْرَؤُوا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْآنِ﴾ ګرځیږي هغه امر باندې دغه کس امتثال وکړو هر چې مرتبه فرضي د دې امر ده او د وجوب ده هغه په داخل الصلوة کې ده.

هر چې خارج د صلوة نه دي نو تلاوت مستحب دی هغه هم دې نه ثابت دی دغه استحبابي امر کې ته ممتثل ګرځیږي که ته هر وخت کې تلاوت کوي که دورځې کوي که د شپې دا مأمور به غیر موقته ده دغه شان ته صدقات دي:

﴿وَأَنفِقُوا مِن مَّا رَزَقْنَاكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ﴾

خیراتونه وکړې مخکې له راتلو د مرګ نه ستا دا طول زمن د عمر یې وګرځوه وخت د اداء د نفقاتو ورځ وي که شپه وي.

هر څوک هر وخت کولې شي چې خیرات وکړي په دې کې بعضې وخت کې صدقه کولو ته که څوک نسبت د بدعت کوي دا ناپوهي د هغه ده په خپلو اصولو باندې ته په مأمور به غیر موقته کې توقیت ستا کار دی څه مأمور به موقتي دي د موقتي لپاره مثال لکه مونځ:

﴿أَقِيمُوا الصَّلَاةَ﴾ کې پرې امر شوې دی:

﴿إِنَّ الصَّلَاةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ كِتَابًا مَّوْقُوتًا﴾ كې د شارع له خوا نه تعين د وخت راغلي دغه پنځه وختونه چې شارع ټاكلي دي دې نه اخوا ته بل څوک وخت نه شي ټاكلې كه يې وټاكه نو بدعتي دي .

مثلاً اوه (٧) بجې يو څوک د سحر لمونځ كوي نو تپوس ترې وكړه چې وقتي كوي او كه قضائي كوي كه نوم د وقتي يې اوه (٧) بجو كې د سحر لمونځ ته وركړو نو دا بدعتي دي كار خو ښه كار كوي مونځ كوي په اوقات مكروهه وو كې هم نه كوي دې وخت كې خو جائز دي ذات كې خو يې څه قباحت نشته دي كنه نو دې وخت كې بيا دا مونځ ولې ناروا شي بدعت دي دې شارع له ځان نه شريعت جوړ كړو شارع دا وخت نه دي ښودلي او دې يې بنايي ځكه دا مأمور به موقته وه توقيت د شارع نه وه د بل هيچا توقيت په كې دخل نه لري كه يې وكړو نو بدعت لازميږي .

دغه شان من جمله د هغې نه صوم رمضان دي :

﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ﴾ سره يې فرضيت دي.

﴿شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ﴾ يا ﴿فَمَن شَهِدَ مِنكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ﴾ سره تعين د وخت دي كه څوک په بله ورځ باندې د رمضان روژه نيسي او وايي دا د رمضان په نيت باندې نيسمه دا بدعتي دي اجر نشته بدعاتو كې .

دارنګې حج دي نو حج دا د مفروضاتو نه دي:

﴿وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلَّهِ﴾

ليكن: ﴿الْحَجُّ أَشْهُرٌ مَّعْلُومَاتٌ﴾ شوال ، ذي القعده او عشر ذي الحجة كه دې ايامو نه غير څوک حج ته لاړ شي او ټول اركان د حج په ځاى راوړي نو دې ممتثل د اتمو الحج نه ګرځيږي بلكې لا بدعتي ګرځيږي .

خلاصه دا چې په مأمور به موقته كې توقيت مكلف ته نه وي سپارلې شوې د شارع نه وي له ځان نه توقيتات مستلزم بدعت لره دي په مأمور به مطلق عن الوقت كې توقيت د شارع نه ، نه وي سپارل شوې مكلف ته كه هغه په هر وقت ادا كوي بدعت نه لازميږي كه دې اصل پسې څوک لاړ شي نو دعاء بعد سنت كې به هيڅ دليل ته هم ضرورت پرې پيدا نه شي .

هغه مقابل جانب نه به دا تپوس کوي چې دعاء بعد السنة تاسو مأمور به ګڼي که غیر مأمور به ګڼي که وي ویل چې غیر مأمور به ده: ﴿ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً﴾ سره دعاء د مأمور به نه ګرځیدلې ده نو بیا تپوس وکړي چې مأمور به په غټ تقسیم سره په دوه تقسیمه شوې ده مطلق عن الوقت او موقته دا مأمور به موقته ده که مطلق د وقت نه ده که ده وویل چې موقته ده نو توقیت یې د شارع نه ثابت کړه لکه مونږ په مانځه کې په روژه او حج کې ثابت کړو ته په دې کې توقیت د شارع نه ثابت کړه چې د هغه وخت سره جائز شي او د هغې نه اخوا څوک ممتثل د امر د ادعوا ګرځي هغه بدعتي شي که تا نه تپوس وکړي چې ته یې غیر موقته ګڼي او تعمیم د وقت ورته ثابتوي یعنې مطلق یې ګڼي تا سره څه دلیل دي اولین دلیل چې تاسو سره مذکور دي: ﴿أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ﴾ دا دلیل د اطلاق دي قبلوم دعاء د دعاء کوونکي کله چې ما ته دعاء کوي.

دا اذا د عموم الاوقات لپاره دي دا دلیل د دې شو چې کوم وخت کې هم څوک دعاء کوي رب کریم قبلوي په دعاء کې اوقات مکروهه بیخي نشته دي دا ستاسې د ذهن خلاصولو لپاره مادا خبره وکړه چې د ډیرو خلکو نه مو اوریدلي چې دا بدعت او دا بدعت هسې اصولو کې کوم څیز چې مطلق عن الوقت وي بدعت نه لازمیږي هلته کوه ته که داسې بدعت لازم شي تعلیم القرآن مطلق عن الوقت دي:

خیرکم من تعلم القرآن وعلمه.

او په تعلیماتو باندې او امر موجود دي خو مطلق عن الوقت دي که څوک په کوم وخت کې تعلیم القرآن کوي بدعتي نه دي او که څوک په داسې مطلق عن الوقت کې دلائل غواړي چې نه بالفعل د رحمت عالم نه ثبوت غواړمه.

نو زه به لنډ راتاو شمه وبه وایم چې په ۷:۳۰ بجې د سورة یس تلاوت جائز دي او که نه دي جائز که وایي چې ناجائز دي دا خبره به معقوله وي که غیر معقوله به وي که وایي چې جائز دي او دلیل غواړي نو د رحمت عالم نه به ۷:۳۰ بجو کې تلاوت ثابت کړه سورة یس پریږده مطلق تلاوت ثابت کړه.

دغه رنګې د تعلیم القرآن اداري په شوال ۲۰ یا ۲۵ شروع کیږي که دې ته لاړ نه شي چې دا مطلق عن الوقت دي دلته توقیتات په مکلف باندې دي بدعت نه لازمیږي که هسې صوري لفظي يو بدعت دي خو حقیقت کې دا بدعت مذموم مقبوح نه ګڼلې کیږي که دا ونه وايي يو څوک به اعتراض وکړي چې د مدارسو کوم طرزونه دي په شوال کې ۲۰ یا ۲۵ آغاز د تعلیماتو کوي بدعت دې ګڼې دا مونږ ته د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه ثابت کړي چې په شوال کې درس شروع کړې وي خو نه يې دي کړي.

دغه شان ماخوستن چې دوي کومې ترجمې شروع کړې دي وکړي اعتراض چې ستا په سنتو او بعد سنة دعاء باندې اعتراض کوي ته د هغه په ترجمې اعتراض وکړه وایي دا ته چې کومه ترجمه کوي دا بدعت ده که وايي چې سنت ده نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه بعد صلوة العشاء درس ثابت ده هغه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو به د عشاء مونځ نه وروسته ډیر په جلتي تللو ویده کیدو به وخت به يې نه ورکوه بلکې منع يې کړې ده د سمر بعد العشاء نه د ماخوستن نه يې وروسته له خبرو نه منع کړې ده اګر که سمري علمي بعضې محدثین جائز ګڼې خو هسې له ده نه د اثبوت وغواړي چې ماخوستن نه وروسته ترجمه مونږ ته ثابته کړه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه بالفعل نه شي ثابتولې.

دغه شعبان کې چې ټول مدارس ترجمه شروع کوي او د رمضان په آخر کې ختموي دې لپاره مونږ ته څه ثبوت راکړي په قرونو ثلاثه وو کې اوس ددې دیوبند د زمن نه دیخوا چې ددې ایجاد شوې دې نه مخکې مونږ ته وبنایه نه شي ښودې خو ددې ټولو جواب به دا وي چې مونږ دا مأمور به تعلیمات غیر موقت مطلق ګڼو او په مطلق کې توقیت په مکلف وي د شارع نه، نه وي په هر وخت چې ته تعلیم کوي جائز دي او په هر وخت ترجمه کوي جائز ده په هر وخت کې چې ته مدرسه جوړوي او درس په کې کوي جائز دي څه خلاف دې کې نه راځي.

## حکایت :

یو کال زمونږ دلته د مناظرې کورس وه د چارسدې نه یو مولوي صاحب راغلې وه میلمه وه د لغمان وه ښه مدرس ملا وه د شپې ناوخته بره چت کې شور وه ما د یو طالب نه تپوس وکړو چې څه مسئله ده وایي میلمه راغلې طالبانو سره يې مناظره شروع کړې زه ورغلم ورسره کیناستم داسې متعصب غوندې انسان وه منونکې هم نه وه هغه بحث هم

ورسره فضول وه لکه مناظره وه او بحث یې نه کوه هسې مجادله مکابره وه نو طالبانو ورسره
ډیر وخت نه ځان ستړې کړې وه نو ما ورته لنډ وویل چې مولوي صاحب ته دعاء مأموربه
ګڼې که غیر مأمور به یې ګڼې ؟

وایې مأمور به یې ګڼم ما ورته وویل چې تا خو به اصول ویلې وي حسامې وغیره دا
مطلقه ده که موقته ده ؟

سرې سوچ کې شو وایې څه مقصد دې دي ما وویل مقصد دا دی که دا مطلق وي
توقیت په ماباندې دي چې زه یې کله هم کوم نو بدعت ولې شو که مؤقته وي توقیت ته
وبنایه سړي خو پوه شو که اوس ورته مطلقه وایم دلته خو مې راګیروي وایې دا خو مؤقته ده
ما ورته وویل دلیل د مؤقتې راکړه .

وایې نبي اکرم ﷺ فرمایي چې تاسو کله مسجد ته د ننه کیږئ نو دا دعاء به
کوئ او چې را بهر کیږئ دا دعاء به کوئ تشناب ته ځئ داد دعاء کوئ او چې رابهر کیږئ دا
دعاء کوئ دا توقیت شو کنه نو ما ورته وویل چې مولوي صاحب دې ته تقید ویلې شي او
توقیت ورته نه شي ویلې دا نبي اکرم ﷺ تمکین بنودلې تعین د مکان یې کړې دي
تعین د وقت یې نه دي کړې سوچ پرې وکړه .

وایې نه دا توقیت دي ما ورته وویل توقیت تعین الوقت ته وایي وقت یې نه دې
بنودلي مکان یې بنودلي دي ضد یې کوه نو ما ورته وویل چې سحر کې سړې مسجد ته
راځي دعاء به څه وي دعاء یې ذکر کړه ما ورته وویل چې بیا د شپې راځي څه دعاء ده وایې
همدغه به وي .

ما ورته وویل چې ماز یګر راځي وایې همدا به وي ما ورته وویل تمکین دي کنه
توقیت نه دي که توقیت واي نو د ورځې به یوه دعاء وه د شپې به بله دعاء وه کنه دا خو یې
مکان بنودلي چې دې مکان کې دا دعاء وکړې البته تقید ورته ویل کیږي دده مطلق یې څه
تقید وشو خو په توقیت سره نه په تمکین سره مکان یې معین شو .

بیا یې شور جوړ کړو ما ورته وویل چې زه تا نه تپوس کومه دعاء جائز ده که نه ده جائز
که جائز وي دا طالبانو سره چیړ ولې کوي وایې نه دا جائز نه ده ما ورته وویل غیر جائز دا

وايي هاو ما ورته وويل چې خلاصه خو به دې ويلې وي غير جائز هم قسمونه لري : حرام، يې هم قسم دي ، مکروه يې هم قسم دي دا يې کوم قسم دي .

وايي دا مکروه ده ما ورته وويل چې د مکروه زمونږ شريعت تعريف ښودلې فقهاءد مکروه څه تعريف کوي وايي چې دليل ظني کې نهي ثابتوي ما ورته وويل دليل ظني څه شي ته وايي وايي خبرِ واحد ته وايي ما ورته وويل مونږ ته وښايه نهي مکروه ته وايي دليل ظني باندې نهي غواړي نهي مونږ ته وښايه .

بيا يې ټوپونه شروع کړل چې دا نبي عليه السلام نه ده کړې ما ورته وويل چې دا نه کول وجودي دي که عدمي دي وايي دا عدم دي ما ورته وويل چې دليل موجد د شي ته ويل کيږي وجود د شي ، شي لره فرعه ثبوت د مثبت له وي ته بل ته په يو شي وجود ورکوي خپله خو به عدمي نه وي کنه عدم څنګه دليل ګرځوي دليل خو داسې يو شي وي چې هغه بل ته ثبوت ورکوي نو خپله به څنګه ثبوتي نه وي وجودي به نه وي نو دليل پيش کړه وجودي دليل پيش کړه دا مه وايه چې دا نبي عليه السلام نه ده کړې .

ما ورته وويل چې څه دا پيش کړه چې يو صحابي ويلې وي چې نبي عليه السلام دا عمل نه دې کړې دا وښايه مونږ ته روايت العدم پيش کړه چې يو صحابي د عدم روايت کړې وي دا روايت العدم عدمي نه دي دا وجود لري خپله اويو عدم الرواية دي چې په يو څيز کې روايت نه وي دا عدم محض دي عدم محض له سره دليل نه شي کيدلې ځکه وجود نه لري چې وجود نه لري نو دعوى به څنګه ثابتوي .

بيا ډير خفه شو وايي تاسو ميلمنو ته هم دا عزتونه ورکوي دا کوي هغه کوي په بل اړخ باندې لاړ سم لغمان چل وه لغماني وه نو ما ورته وويل چې ګوره شور تا جوړ کړې وه ته ځان ته عالم وايي مدرس وايي دا طالبان دي ددوي عقائد خرابوي او راځي زمونږ اداري ته مونږ خو اوس هم ډير قدر در کړو که دا بل څوک وي نو مونږ پرې کوتکونه اچول ما ورته وويل چې ته ډير خوشحاله شه مونږ ستا ډير قدر کړې .

بيا څه وخت وروسته په چارسده کې د دستار فضيلت جلسه وه هلته لاړمه سر ډيرو کې جلسه وه دغه مولوي صاحب چا خبر کړې وه هغه علاقه کې چيرته به وه نو راغې چې کله راغلو نو وجود يې لړزيدلو رپيدلو د غصې نه او شونډې هم ښوريدلې او زه خو ورته متوجه

ومه چې سړي خو هغه زړه غصه په ما سړه وي خو داسې ورو ځان رانزدې کوي او د دوړې په وخت کې راغلو ما سره خوا کې کیناستلو .

وایي صیب اعتراض نه کومه خو ځان پوهه ومه وجود یې همغسې رپیدلو نو ما ورته وخندل ورته مې وویل ځان لږ کنټرول کړه وکړه خیر دې دا خو علمي خبرې دي ما او تا به یې کوو سره نو رعب نور هم پرې راغلو او لړزه یې زیاته شوله وایي چې د علم غیب خبره تاسو کوي او ملا علي قاري صاحب لیکلي دي چې مخلوق ته څوک علم غیب ثابتوي کافر کیږي د بحث خپله طریقه وي نو ما خو له ده سره مناظره نه کوله هسې دې مې غلې کوه .

ما ورته وویل دا کفر امرِ قطعي دي که ظني دي وایي قطعي دي ما ورته وویل چې امرِ قطعي په څه ثابتیږي وایي دلیل قطعي باندې ما وویل قول د ملا علي قاري دلیل قطعي دي ستا په نزد چې کفر پرې ثابتوي سړي بیا غصه شو تېږ پو نه یې شروع کړل وایي ته ملا علي قاري نه مني ما وویل ګوره زه یې منمه خو په الوهیت نه .

وایي ته ملا علي قاري صاحب نه مني ما ورته وویل نه یې منمه پیغمبر یې نه منمه ته خو ما نه تپوس وکړه چې زه یې کومه رتبه کې نه منمه زه یې منمه یو مقلد فقیه او تقلید د مقلد غټ هلاکت دي چې څوک د مقلد تقلید کوي د ده خپله خبره چې قال ابو حنیفة په کې نه وي قال ابو یوسف په کې نه وي ما ته هیڅ اهمیت نه لري زه خو د ده مقلد نه یمه زه خو د احنافو او د حنفیت ټول مقلد یمه .

وایي نو څه دلیل تا سره په دې باندې ما ورته وویل چې د خالق سوا بل هیچا ته هم دغه علم ثابتول شرک دي وایي چې هاو ما ورته وویل :

﴿وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا﴾ .

زاد المسیر کې ابن عباس صاحب ترجمه کوي ای علم الغیب ، مونږ خضر علیه السلام ته علم غیب ورکړې وه ما وویل دا خضر علیه السلام خالق نه وه مخلوق وه علم غیب قرآن کریم ورته ثابت کړي او د علماء معنی ابن عباس رضي الله عنه په علم غیب سره کړې .

په زاد المسیر کې ۱۹ تفاسیرو همدغه معنی کړې په علم غیب کې به یې زه پیش کومه خو دې ځای کې د زاد المسیر د ابن عباس رضي الله عنه قول ورته پیش کړو سړي ډیر ګرم شو وایي چې نه مونږ به د ملا علي قاري صاحب قول نه څه جواب کوو مونږ خو احناف یو کنه ما ورته

وویل ته وریسې روان یې جوابونه تري نه کوه زه وریسې روان نه یم نو جواب څه د پاره وکړمه.

ما ویلې دي چې ملا علي قاري صاحب دا ښه خبره کړې ده البته تا ضد وکړو عناد دې وکړو تا اول نه وویل ځان پوهه ومه وروسته دې شور جوړ کړو او خلک دې نور هم په ځان خبر کړه نو ماهسې ستا علم اندازه کوله چې ستا دغه علم دې ټول تا سره ما بحث نه کولو.

په دې موضوع د ملا علي قاري صاحب قول ته الحمد لله مونږ ښکلې محمل لټوو د هغه مقصد علم ذاتي کلي دي هغه داسې وايي که چا دعوی وکړه چې زه په غیبو پوهیږمه داسې الفاظ هغه وايي نو دلته نفي د علم غیب ذاتي کلي ده یو سړي ځان ته علم خپل ثابتوي عطاء من الله یې نه ګڼي دغه.

او چې کوم عطاء من الله یې د هغې مینځ کې ډیر څیزونه توسط کې راځي د جبریل عليه السلام د وحي امکان شته تلقي بالقلب من الله شته رؤیا منام حسنه په کې شته فراست شته، شرح صدر شته ډیرو طریقو باندې د هغې حصول کیږي.

او بیا په اکبر پوزه کې زما څه دوستان وه هغوي ته یې ویلي وه چې ما خو له ده سره مناظره وکړه زه یې ورته یاد کړې ومه په علم غیب مسئله کې او بیا یې له ما نه معافي وغوښتله او معافي په آخره کې ده غوښتې وه او ما ته یې وویل چې ستاسو ډیره ښه رایه ده او زما خوښه شوله دا الفاظ یې آخره کې وویل.

# المبحث الأول : الاستدلالات من القرآن الكريم :

(۱) دليل سورة بقرة آيت نمبر ۱۸٦:

﴿ وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ ﴾ يا رسول الله ﷺ کله چې تپوس کوي ستا نه عباد زما باره کې په لفظ د أقريب ربنا فنناجيه ام بعيد فنناديه نو جواب ورکړه : ﴿ فَإِنِّي قَرِيبٌ ﴾ نو دُعا کې جهر نه خفيه افضل دي :

﴿ ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً ﴾ دليل ددې دي اجتماعي دعاء کې چې خلک پرې آمين وويلې شي جواز شته دي د رفعې قبلوم دعاء د دعاء کوونکي .

﴿ إِذَا دَعَانِ ﴾ کله هم چې ما ته دعاء کوي .

تاسو که قرآن عظيم الشان وګوري :

﴿ وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ ﴾

دې ځای سره به تاسو ته وقف په نظر راشي استحبابي ﴿ أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ ﴾ دا وقفونه ولې راغلل دا خو هم لويو امامانو لږولي دي وقف لازمه چې کوم ځای کې راشي نو هغلته اکثراً مقولة العبد د مقولة الله نه بيله شوې وي که څوک ونه دريږي نو تمام مضمون خرابيږي .

او وقفونه استحبابي چې دي هغلته کله چې په دې ثاني کې احتمالات کثيره وي نو دوي وقف استحبابي کوي يبا کيدې شي داد ما سبق سره تړ شي او کيدې شي جدا شي او کله وقف استحبابي د وجې د تعدد د نزول نه وي دغه مخکې د وقف نه شان نزول يو وي د وروستني شان نزول جدا وي .

د شان نزول د تعدد د وجې نه دوي په مينځ کې وکړي لوستونکي پوهه کړي اشارت ورکړي چې دلته څه بله مسئله کې نازل دي دې ځای کې دا وقف په دغه معنی شوې دي ولې ﴿ فَإِنِّي قَرِيبٌ أُجِيبُ ﴾ د دواړو متکلم باري تعالی دي فَإِنِّي قَرِيبٌ فَإِنِّي أُجِيبُ دعوة الداع، بيا څه ضرورت دي وقف لره مقوله خو نه جدا کيږي يوه مقوله ده د باري تعالی نه .

دا شان نزول جدا دی هغه شان نزول عطاء ابن ابي رباح اول شان نزول دادی چې د أبي بن کعب په روایت سره :

قال قال المسلمون يا رسول الله أقريب ربنا فنناجيه ام بعيد فنناديه . فأنزل الله تعالى :

﴿وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ﴾ (تفسیر در المنثور جلد ۲ صفحه ۲۶۰)

واخرج وكيع و عبد بن حميد و ابن جرير و ابن المنذر وابن ابي حاتم عن عطاء بن ابي رباح: انه بلغه لما انزلت .ده ته دا روایت را رسیدلې دي چې هر کله نازل شو :

﴿وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ﴾ هغه آیت نازل شو چې سورة غافر ۶۰ نمبر آیت دي.

قالوا : صحابه کرامو رضي الله عنهم عرض کوي :

لو نعلم اي ساعة ندعوا . کاش چې مونږ پوهـ شوي واي چې خالق نه کوم وخت کې دعاء کوو د تعین د وخت سوال يې وکړو .

فنزلت : ﴿وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ أُجِيبُ﴾ الی قوله : ﴿يَرْشُدُونَ﴾ نو دغه تکړه په کې نازله ده چې : ﴿أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ﴾ کله هم چې ما ته دعاء کوي .

اوس شان نزول ته گوري :

لو نعلم أي ساعة ندعو؟ . کاش مونږ ته معلومه واى .لو شرطي نه دي لو تمنائي دي جزاء نه غواړي .

لو نعلم أي ساعة ندعو؟ . کاش مونږ ته معلومه وې چې کوم ساعت به مونږ دعاء کوو دا علم کاش راکړل شوي واى جواب راغې :

﴿أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ﴾ قبلوم دعاء د دعاء کوونکي اذا دعان کله هم چې ما ته دعاء کوي صحابه کرام سائلين د تخصيص الوقت دي آيت کې جواب د تعميم الوقت نو آيت دليل د دې شو چې دعاء د مطلقاتو نه ده په وقت کې .

دغه شان نزول چې د أي ساعة ندعو سره دا نازل شوې دي تفسير ابن کثير جلد ۱ صفحه ۵۰۶ کې نقل کړې ابن جرير طبري جلد ۳ صفحه ۲۲۴، فتح القدير د شوکاني جلد ۱ صفحه ۲۴۳، تيسر العلي القدير لاختصار تفسير ابن کثير جلد ۱ صفحه ۱۹۸ کې ذکر کړي .

شان نزول مې ددې لپاره ذکر کړو چې تاسو ته طريقه د اخذ واضحه شي چې دا دوي سوال کړې دي چې مونږ کله دعاء کوو تخصيص غواړي توقيت غواړي آيت کې تعميم دي اطلاق دي چې وقت دې ته نشته دي ، کله هم چې تاسو کوي رب کريم به يې قبلوي په استجماع د شرائطو سره چې اودس بهتر دي قبلې ته ناسته بهتره ده رفع د ايديو عند الصدر په کې ده توسلات دي په صلحاو باندې صفائي د باطن ده له محرماتو نه ډير ځيزونه دي چې هغې سره به قبليږي چې هغه نه وي نه به قبليږي .

تاسو چې دا زير بحث ګرځوي د منکرينو سره او دا ايات استدلال کې پيش کوي نو طرز او طريقه د اخذ به ستاسو دا وي دا ايات چې پيش کوي مقابل جانب نه به تپوس کوي رب کريم فرمائي :

﴿أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ﴾

وايي ددې ترجمه راته وکړه هغه نه تپوس وکړه قبلوم دعاء د دعاء کوونکي کله چې هم ما ته دعاء کوي نو اوس وايي تا نه تپوس کوم بعد السنة او بعد الجنازة يې قبلوي او که نه.

که وايي چې نه يې قبلوي استثناء وبنايه مونږ ته چې بل آيت يا نبي عليه السلام يا بل چا استثناء کړې وي چې دا دوه وختونه مستثنی دي دې وخت کې نه قبلوي اوس وايه چې قبلوي او که نه که وايي چې قبلوي يې نو بدعت څنګه شوه او که وايي چې نه يې قبلوي استثناء وبنايه مونږ ته .

طريقه د استدلال به مو داسې وي که خپل ددې زمانې مشائخ يې درته پيش کړه هغه ته وايه تا استثنی د مطلق نه وکړه او استثناء د مطلق نه تقيد د مطلق وي ولې مطلق خو عام شي کل افرادو ته بعد السنة او بعد الجنازة ته هم دا عام شو ته چې ترې استثناء کوي حصر د مطلق دې وکړو تر بعضې افرادو حکم دې شامل نه کړو تر بعضې افرادو دا تقيد د مطلق شو او تقيد د مطلق نه دې مګر نسخه د مطلق د حکم ده د بعض افرادو نه او نسخ د مطلق قطعې به کيږي په قطعي باندې وايه د رستمي او د بشاوري په قول باندې نسخه څنګه کوي دا دې کوم اصل راوړو ددوي په قول هم چيرته نسخه کيږي .

دې به وايي نه ، چې صيب دا خو عام دی ، عام نه څنګه دليل نيسي ورته وايه تا خو اصول الشاشي قدري هم نه ده ويلې اول د استدلالاتو نه کتاب الله ، کتاب الله لره شل اقسام

دي خاص دي عام دي مشترک مؤول دي نو دا عام دليل دي کنه که عام دليل نه واي نو څنګه قرآن کريم د اقسامو مستدلو وو نه عام ګرځوي.

دا خاص عام مشترک مؤول داد تمام قرآن کريم اقسام نه يادوي چې ته په قصص د موسی عليه السلام کې هم دا جوړ کړي دا ۵۰۰ آيتونو کې دا قسمونه جوړ دي په ثناء کې دا نه جوړيږي په قصص کې نه جوړيږي دا په څه شي کې جوړيږي کوم چې ترغيبات د عقائدو ورکوي چې زياته حصه په دې لړيدلي ده په هغې کې دا نه جوړيږي دا چې کوم دي په احکاماتو کې دي کوم آيتونه چې په احکامو کې نازل دي هغوي کې قرآن کريم شل (۲۰) قسمه کيږي حقيقت مجاز ظاهر نص محکم الخ

**دويم دليل:** پاره ۳۰ سورة انشراح آيت ۷–۸: ﴿ فَإِذَا فَرَغْتَ فَانصَبْ ۷ وَإِلَىٰ رَبِّكَ فَارْغَبْ ۸﴾ کله چې فارغه شوې نو ځان ستړې کړه **فانصب** معنی **فاتعب** او رب کريم ته خپل ميلان او رغبت پيدا کړه.

اله العالمين عجيب ذات دي بس اجمال کوي د خلکو اندازه لړوي چې خلک اوس څه کوي ځکه قرآن عظيم الشان نه اخذ کول داد عقلاو کار دي **وللعاقل تكفيه الاشارة**، اشاره ورته بس وي او کم عقل ته کوتک وي کوم چې حمقاء دي پرې نه پوهيږي هغوي ته يې جهاد فرض کړې واي کوتک پسې را واخلي: ﴿ جَاهِدِ الْكُفَّارَ وَالْمُنَافِقِينَ ﴾ منافق ته يې باللسان را واخله او کوم چې عقلاء دي هغوي ته اشاره بس ده.

**اذا فرغت**. چې کله فارغه شوې.

**فانصب**. نو ځان ستړې کړه **فاتعب**.

اوس دا يې ونه ښودل چې د څه شي نه فارغه شوې دا يې هم ونه ښودل چې ځان په څه شي کې ستړې کړه کله چې فارغه شوې ځان ستړي کړه مفسرين کرام **فراغت من امور الدنيا** او ستړتيا په امورو د دنيا کې دا خو بالکل نه مرادوي.

ولې ځکه باري تعالی د شان نه په داسې أوامرو باندې امر بعيد دي هغه دې سره امر نه کوي دا معنی ونه کړي اذا **فرغت** چې د تاڼکي چلولو نه فارغه شوې **فانصب** په روټي خوړلو کې ځان ستړي کړه، امکان خو شته ددې تاويل خو هيڅ نه دي مراد دا تاويل ځکه د شان د

باري تعالى سره دغه شانته امر بعيد دي چې هغه دې خلکو ته په دنياوي کارونو کې د سترتيا امر وکړي نو هغه نه دي مراد نو فراغت به هم له امورو د آخرت نه وي او سترتيا به هم په امورو د آخرت کې وي هغه مراد شو .

يا لا أقل فراغت به له امورو د دنيا نه وي او سترتيا به په امورو د آخرت کې وي دا هم مراد کيدې شي لکه بعضې مفسرينو اخيستي اذا فرغت ، چې کله فارغه شوي له امورو د دنيا نه ، فانصب ، ځان سترې کړه په عباداتو کې چا دا اخيستي دي ترې نه ، چا ويلي دي : اذا فرغت ، کله چې فارغه شوې له جهاد نه نو فانصب ، ځان سترې کړه په ذکر کې وغيره دعواتو کې .

چا ويلي اذا فرغت چې فارغ شوې من الصلوة فانصب ، فاتعب في الدعاء ، ځان په دعاء کې سترې کړه دا چې بعضې مراد دي او بعضې نه دي مراد ټول مراد کيدې شي خو دغه ديني تاويل به اخلي مونږ دغه ځای کې دغه تاويل نه اخذ کوو .

چې کوم چا دا تأويل کړي : اذا فرغت من الصلوة فاتعب في الدعاء ، چې د مونځ نه فارغه شوې نو دعاء کې ځان سترې کړه مونږ دې ځای نه استدلال لرو دا تأويل منقول دي له عبدالله بن عباس او د امام قتادة او د ضحاك نه دوي نه منقول دي تفسير ابن جرير الطبري جلد ۲۴ صفحه ۴۹۷ دغه ايات تأويلاً را اخلي :

اختلف اهل تأويل في تأويل ذلك فقال بعضهم معناه : اذا فرغت من صلواتك فانصب الى ربك في الدعاء وسله حاجتك . نو سترې کړه رب کريم ته ځان په دعاء کې کله چې فارغ شوې له مانځه نه .

دا رنګې په صفحه ۴۹۸ کې بيا ذکر کوي : د حضرت قتادة روايت پيش کوي :

اذا فرغت فانصب الى ربك فارغب . قال أمره اذا فرغ من صلواته ان يبالغ في دعائه .

حضرت قتادة رضي الله عنه فرمايي چې کله مونځ نه فارغيږي مبالغه في الدعاء به کوي په دعاء کې به ښه کوشش کوي .

همدغه تاويل تفسير قرطبي هم ذكر كړي دي جلد ۲۰ صفحه ۱۰۸ او دا يې منسوب كړي حضرت ابن عباس رضي الله عنه ته :

قال ابن عباس وقتادة فاذا فرغت من صلاتك فانصب اى بالغ في الدعاء وسله حاجتك .

او تفسير الدر المنثور ذكر كړي : جلد ۱ صفحه ۵۸۵٦ .

تفسير الكشاف ذكر كړي جلد ۴ صفحه ۷۷۴ .

تفسير اللباب لابن عادل جلد ۱ صفحه ۵۳۰٦ .

تفسير الماوردي جلد ٦ صفحه ۲۹۸ .

او په تفسير ماوردي كې دغه مذكوره صفحه كې دا هم زيات كړي دي :

وفيه قال الضحاك . نو ضحاک هم پرې قائل شو .

تفسير النسفي جلد ۴ صفحه ۴۰ ، او تفسير ابي السعود جلد ۷ صفحه ۳۰ ، احكام القرآن للجصاص جلد ۵ صفحه ۳۷۳ ، غريب القرآن لابن قتيبة جلد ۱ صفحه ۵۲۴ ، دې ټولو دا ذكر كړي .

دارنګې سورة المؤمنون پاره ۲۴ آيت نمبر ٦۰ دا دوه آيتونه دي كې پيش كومه چې د دعاء په كولو باندې وروسته د فراغت د مانځه نه هم امر شوې دي دعاء په عامة الأوقات كې چې شرائط يې پوره وي رب كريم يې قبلوي اوس دا خبره چې څوک دعاء نه كوي د هغوي باره كې قرآن عظيم الشان كې ذم شته د كولو باره كې څوک ذم نه شي ښودلې ، او دارنګې دعا والا پسې چې څوک مسخرې كوي د هغوي د پاره قرآن عظيم الشان كې ذم شته خو د كولو د دعاء والا ذم قرآن عظيم الشان كې څوک نه شي ښودلي .

د سورة مؤمن ٦۰ نمبر آيت پاره ۲۴ :

﴿وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ﴾.

هغه كسان چې هغوي كبر كوي له دعاء زما نه عن عبادتي عبادت دلته په معنى د دعاء سره دي ځكه مخكې ترې دعاء ذكر ده : ان الذين يستكبرون عن عبادتي ، هغه كسان چې كبر

کوي د دعاء زما نه، سیدخلون داخل به شي جهنم ته داخرین، خوار او ذلیله.

نو متکبر د دعاء نه د هغوي باره کې وعید راغلې دي دوي به یو وخت کې بعد السنة او بعد الجنازة نه منله اوس په کې اهل حدیث بعد الفرض ته هم بدعت وايي هغه هم نه کوي بیا به یې یو وخت کې اجتماعي او انفرادي خبره کوله اوس تاسو جمله اهل حدیثو ته متوجه شي انفرادي دعاء هم نه کوي بالکلیة دعاء نه کوي نه یې ځان ته کوي او نه یې په جمع باندې کوي دا هسې مخکښې باني وي ددوي.

دارنګې سورة المؤمنون ۱۰۸،۱۰۹،۱۱۰ نمبر آیتونو کې جهنمیان او اشقیاء چې جهنم ته ګذار کړې شي رب کریم د هغوي حکایت عبادو ته دنیا کې کوي چې ددوي حال به څه وي.

﴿قَالَ اخْسَئُوا فِيهَا وَلَا تُكَلِّمُونِ﴾ له طرفه د باري تعالی نه مالک د جهنم به جهنمیانو ته وايي کوري شي بعید شي ژور کوز شي په دې جهنم کې.

﴿وَلَا تُكَلِّمُونِ﴾ ما سره خبرې مه کوي، سوال زاري هم مه کوي دا اشقیاء چې جهنم ته لاړ شي رب کریم دوي ته اوس علت وايي چې تاسو مې دې جهنم ته ولې راوستي.

﴿إِنَّهُ﴾ شان دا ضمیر شان کړه.

﴿كَانَ فَرِيقٌ مِّنْ عِبَادِي﴾ وه یوه ډله د عبادو زما نه.

﴿يَقُولُونَ﴾ چې ویل به یې دغه دعاء:

﴿رَبَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَأَنتَ خَيْرُ الرَّاحِمِينَ﴾ دا دعاء ده دا دعاء یې ویله.

﴿فَاتَّخَذْتُمُوهُمْ سِخْرِيًّا﴾ وونیوه تاسې دغې دعاء والا په مسخرو باندې دومره مسخرې مو وکړې.

﴿حَتَّىٰ أَنسَوْكُمْ﴾ چې ددوي د استهزاء یاد ویسته تاسو نه.

﴿ذِكْرِي﴾ ذکر زما.

﴿وَكُنتُم﴾ او وي تاسو.

﴿مِّنْهُمْ﴾ دې دعاء د ذکر والا پورې.

﴿تَضْحَكُونَ﴾ خندا کاني به مو کولې .
دا عمل هغه زمانه کې مشرکينو کړې وه چې د مؤمنانو مانځه او دعاء دې پورې استهزاء کړې وه دې زمانه کې چې مونږ څومره ګورو دې علاقات جاتو کې همدا طرز او طريق دعاء پورې د استهزاء او داعيينو پورې د ضحک چې کوم دې د دغه منکرينو د دعاء کار دې که اشاعتيان دې او که اهل حديث دې او که نور دې .
تفسير روح البيان جلد ٦ صفحه ٧٨ کې ددې ترجمه کوي :
فاتخذتموهم سخريا اي مهزوًا بهم اي اسكتوا عن الدعاء . او چې پاتې شول له دعاء نه .
بقولكم ربنا الخ . په دې قول دا دعاء نه کوي .
لانكم كنتم تستهزؤن بالداعين بقولهم ربنا آمنا الخ دې دعا والا پسې تاسو مسخرې کولې .
وتتشاغلون حتى انسوكم . تر دې چې ياد ويسته دې استهزاء .
فإن انفسهم ليست سبب الانساء ذكري . ضمير د انسو خو دوي ته راجع دې دې داعيينو ته خو هغه سبب د ياد ويستلو . انساء ، نه جوړېږي بلکه استهزاء د هغوي چې کوم ده سبب ددې جوړه شوه .
اي ذكركم اياي والخوف مني والعمل بطاعتي من فرط اشتغالكم باستهزائهم ﴿وَكُنتُم مِّنْهُمْ تَضْحَكُونَ﴾ وذلك غاية الاستهزاء .
دارنګې ١٩ پاره سورة الفرقان آيت نمبر ٧٧ :
﴿قُلْ مَا يَعْبَأُ بِكُمْ رَبِّي لَوْلَا دُعَاؤُكُمْ فَقَدْ كَذَّبْتُمْ فَسَوْفَ يَكُونُ لِزَامًا﴾
څه کوي په تاسو باندې رب ستاسې که چيرې نه وايي دعاء ستاسې تاسو هيڅ اهميت نه لرلو نو عذاب به يې د رباندې راوستلې وه دا چې نه يې راولي داد داعيينو برکت دې .
نچوړ او خلاصه دا شوه چې د بعد الصلوة استدلال لپاره قرآن کريم نه د اذا فرغت فانصب نه به استدلال کيږي او د دعاء د تعميم د پاره ، اجيب دعوة الداع اذا دعان نه به استدلال

کیږي او دا چې مسخرې څوک دعا والا پسې کوي د هغوي د پاره دغه وعید کافي دي که څوک د خالق نه یریږي او دا ایات واوري نو کله به هم دعاء والا پورې مسخرې ونه کړي.

## المبحث الثاني :

## الاستدلالات من الاحادیث النبویة :

دې کې مونږ سره چند مباحث دي :

(۱) اولاً : الدعاء بعد الصلواة مطلقاً باب لګوو ، د مانځه نه وروسته دعا په دې کې به د منکرینو دغه پرچار ختم شي چې هغوي د خلکو ذهن کې دا اچولې چې ګنې اسلافو یا احادیثو کې د مانځه نه بعد د دعاء څه ذکر نشته.

اوس مونږ ګورو چې څومره روایاتو کې مانځه نه بعد دعاء باره کې قولي، روایات یا تعلیمات د نبي عليه السلام یا د صحابه وو افعال موجود دي دغه وخت کې به دوي سره چون چرا کې فقط دا خبره پاتې شي چې دا په هیئت الاجتماع وه که په انفراد وه نو بل باب به ولیکږي په دعاء بهیئة الاجتماع باندې چې هیئت الاجتماعي دعاء څه جرم نه ده هغه ځان ته جائزه ده او بل باب ولګیږي په تثلیث د دعاء باندې په تکریر د دعاء ثلاثاً باندې نو دعاء بعد الصلواة مطلقاً اول باب شو په دغه باب د احادیثو کې :

صحیح مسلم جلد ۴ صفحه ۲۰۷۳ بیروت چاپ :

حدثنا سعيد بن أزهر الواسطي حدثنا ابومعاوية حدثنا ابومالك الأشجعي عن ابيه قال

كان الرجل إذا أسلم علمه النبي صلى الله عليه وسلم الصلاة.

کوم یو کس به چې ایمان راوړو نبي عليه السلام به د مانځه چل وروښوده.

ثم أمره أن يدعوا بهؤلاء الكلمات .

امر به یې ورته وکړو مونځ چې وکړي نو بیا دعاء کوه په دې کلمو سره.

اللهم اغفر لي وارحمني واهدني وعافني وارزقني .

دا حديث مونږ ته دا ښايي چې رحمت عالم اعرابو لره په وقت د تجديد د ايمان کې اولين تعليم په عمل کې د صلواة ورکړي خو د صلواة سره يې د دعاء چل هم ورښودلي مونځ کوي خو دعاء به هم کوي .

دا رنګې حلية الاولياء جلد ۳ صفحه ۲۰۹ تاسو الحمد لله ټول علماء ياستي چې کوم يو حکم يو مستحب يو سنتو ته شامل شي ثابت شي هغه حکم بيا په دې سننو کې عام وي په مانځه کې د فرضو او سنتو يو څه فرق شته په اداء کې باقي د سنتو په درميان کې څه فرق نشته دي سنت بيا ټول په يوه طريقه ادا کيږي .

مثلاً که تاسو د سحر د سنتو نه بعد دعا ثابته کړي نو دا دليل د دې شو چې د سنتو رواتبو نه بعد دعاء جائز ده ځکه د سحر سنت هم د رواتبو نه دي کنه او دا تخصيص په کې نشته دي چې د سحر سنت د مانځه نه مخکې جائزه ګڼمه او که د مانځه نه وروسته وي ناجائز به وي نو فرق يې څه شي دي سنت ټول يو حکم کې پراته دي کنه لا اقل که د فرضو نه بعد شي او دليل د سنت نه بعد پرې نيسي دليل به تام نه وي خو که د سنتو نه بعد ثابت شي که هر سنت وي د نورو سنتو حکم به همغه وي تهجد سنت دي د هغې نه بعد ثابت شي د سنتو کل حکم پرې ثابت دي .

د اختر مونځونه عندهم سنت دي اګر که عندنا واجب دي د دوي په نزد سنت دي د هغې نه بعد چې دعاء ثابته شي د کل سنتو حکم پرې ثابتيږي سنت ټول په يو حکم کې وي که داسې ونه کړي نو زه چيلنج ورکومه ټولو منکرينو ته چې د ماښام په مانځه کې په سنتو کې د فاتحې لوستل جائز دي که ناجائز دي که وايي چې جائز دي او لازم دي ما ته داسې خاص ځای کې وښايه د ماښام سنتو کې که بل کې يې ښايې زه به انکار کومه تر ې نه وايم چې ماښام کې وښايه نو دا خو هر يو سنتو کې چې يو سړي ضد او عناد کوي دا باني جوړيږي او جمله دين نه به انکار راشي بيا خو چې هر کله په يو سنتو کې مسئله ثابته شي دا د کل سنتو حکم وي بيا :

عن داؤد بن علي بن عبد الله بن العباس عن ابيه عن جده رضي الله عنه قال بعثني العباس الى رسول الله صلى الله عليه وسلم فاتيته ممسيا وهو في بيت خالتي ميمونة رضي الله عنها .

فرمايي نبي عليه السلام ته خپل پلار حضرت عباس رضي الله عنه وليږلم ما ښام وه د ميمونې بي بي رضي الله عنها په کوټه کې نمبر وه او زما خاله وه .

قال فقام رسول الله صلى الله عليه وسلم يصلي من الليل . داد شپې مونځ دي .

فلما صلى الركعتين قبل الفجر .

د صبا يې سنت شول نو چې کله يې دا مونځ وکړو .

قال . وي ويل :

اللهم اني أسئلك رحمة من عندك تهدي بها قلبي وتجمع بها شملي وترد بها الفتي وتلم بها شعثي وتصلح بها ديني وتحفظ بها غائبي وترفع بها شاهدي .

دا دعاء يې وکړه د سحر د سنتو نه بعد دعاء ثابته شوه دا دعاء بعد السنة ده د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم نه بالفعل او حکم د سنتو واخد وي دغه فرق په دې کې چې دي سنت سره منم او دې ته نه منم دا تعصب دي .

**سوال :** د هرې مسئلې دعوی کله مونږ ته وښودلې شي چې مونږ به يې څنګه پېژنو .

**جواب :** ما يو وخت کې دا کورس مناظره په طرز او طريق د مناظرې باندې به درس کولو فان قيل کله داسې ووايي نو داسې به وي داسې يو طرز به وه بيا دې زبيريه جامعه کې زمونږ څه شاګردان وه اهل حديث هم دې کورس کې داخل وه هغوي دا چل ياد کړې وه نو بيا به يې زمونږ طالبان په کې راګيرول بيا ما وويل دلائل به وايمه او بعضې خاصو مسئلو کې لکه تقليد چې هغه ډير زير بحث ده مدارسو کې هغه بيا په هغه طرز بيانومه دعوی پېژندمه دعوی کې مباحثه څنګه په څه طريقه کيښودل کيږي په هغه طرز به يې بيانومه خو هره مسئله کې آسانه طريقه تاسو ته د بحث داده چې يو په مقابل جانب مدعي ثابتوي هغه به تا ته ډيري چغې وهي دعوی دې څه ده .

وايي زه غريب سړي يمه ستا په قول بدعتي يمه او ستا په قول لا علم نا پوهه يمه، مقلدين تاسو علماء هم نه ګڼي تاسو خو مجتهدين يې پوهان يې قرآن او حديث باندې عالمين يې تاسو راته دا مبارکه رايه لږ واضحه کړي ستاسو څه رايه ده .

که هر څومره په تاراتاویږي خو ته به په نرمه ده نه رایه را اوباسي چې ستا څه رایه ده دُعاء بعد السنة جائز ګڼي او که ناجائز سوال به داسې کوي بدعت بدعت ناجائز ګڼي که ناجائز خلاصه خو موٚ ویلي کنه أمور یا جائز وي یا ناجائز وي بدعت خو چې ووایي بدعت کې خپله پنځه قسمونه دي بیا به هلته یوه ګیټه چیر کوي چې دا کوم بدعت دي هغه مه چیړه جائز ګڼي که ناجائز که جائز وي مسلمه که ناجائز وي.

وایه صاحبه لږ رتبه ورته ورکړه کومه درجه کې ناجائزیې ګڼي کفریې ګڼي که شرک یې ګڼي که حرام یا مکروه یې ګڼي درجه ورکړه ورته په هر شي یې چې قول وکړو کولې نه شي ګوري.

ما څو ځایونو کې دوي راتینګ کړې دي بیا چې هوښیار وي ځان اوباسي خو که بیا یې هم قول وکړو چې مکروه ده نو په دغه وخت پر دي بیا دعاء بعد السنة مکروه ده بس هغه وبالله مناظره بیا نور چون چرا ورسره مه کوي ورته وایه صاحبه د مکروه یو شرعي تعریف راته وکړه شرعي تعریف خو ورسره نه وي اهل حدیث به لږ تنګوي.

وایي دا مکروه دي هغه به وایي هاو وایه چې دا مکروه په شریعت کې څه ته ویل کیږي شرعي تعریف د مکروه څه دي ماثبت بدلیل ظني نهیه هلکه دا فقهاء کړې دي تقلید لازمیږي مشرک کیږي دا مه کوه قرآن او سنت کې د مکروه تعریف راته وښایه، مکروه څه ته وایي ښودې یې شي درته چې اصول ونه مني فقه ونه مني تعریفات به د کومه کړي حرام به په څه پیژني مکروه به څه ته وایي فرض به څه ته وایي واجب سنت به څه ته وایي دا خو ټول ائمه وو ښودلي کنه دا چې نه مني نو دا یو څیز هم بیا نه شي منلي بس ناجائز به ټول کفر مکروه په یو شان ناجائز ګڼي بیا رتبه په کې نه شي جوړولې.

او په جائزو کې به فرض واجب او مستحب ستا په نزد یو شان وي بیا دا اوس معقول دین دي که غیر معقول دین دي خپله پرې پوهیږي نو وایي د مکروه شرعي تعریف راته وکړه نو نه شي کولې دلته به هم راګیریږي وایي څه عرفي اصطلاحي تعریف د فقهاء وکړه راته ما ثبت بدلیل ظني نهیه وایي دا ظني دلیل عندك څه شي دي قول الفقیه ظني دلیل جوړیدلې شي نه شي جوړیدلې قول الصحابي جوړیدلې شي نه خبر واحد د نبي عَلَیْهِ السَّلَامُ مرفوع حدیث به

وي متصل به وي منقطع به نه وي معضل معلق به نه وي ضعيف به نه وي صحيح السند به وئي يا به لغيره وي يا به حسن لذاته وي يا به لغيره وي دا ځلور د مقبولاتو نه وي او خبر واحد به وي حتی کې عزيز او مشهور هم په دې کې داخل دي .

ما په اصولو کې ويلې وه چې حديث په دوه قسمه ده متواتر خبر واحد خبر واحد بيا په درې قسمه دي مشهور دي عزيز دي غريب دي مشهور چې درې ذرې سند باندې ورسوي بيا هم خبر واحد دي بيا هم مفيد د علم ظني دي د علم قطعي نه دي ما ثبت بدليل ظني نهيه دا مکروه ده بس ته نور قلار کينه او ده ته وايه چې اوس ما ته بنايه دعاء بعد السنة ته دې مکروه ويلي دليل ظني باندې نهي غواړې ته يې هم داسې تعريف کړه ظني دليل کې نهي وښايه پيدا به يې کړې درته چې ورکړې چيلنجونه او قيامت هم راشي رابه وړې يو دليل په نهي کې نه شي ښودلي درته چې ښه دې ستړې کړو .

وايي پرېږده د صحابي قول کې نهي وښايه هم زه يې منم اگر که دليل ظني نه دې زه يې منم وښايه چې نه يې شي ښودلي اربعة ائمه وو کې د يو امام په فقه کې را ته نهي وښايه هم درسره منمه يې اسلاف فقهاء پرېږده متاخرينو فقهاء کې را ته نهي وښايه .

خو ۱۲۰ کاله مخکې تصنيف دې خو انه ځکه د ديوبند او بريلي نزاع راغلې ده دې نه دې خوا دليل دې نه منمه هر بحث کې به ۱۲۰ کاله نه ديخوا کتاب ورسره نه مني دلته ضد او عناد راغلي ډېرې خبرې د بريلي له ضده ديوبند ناجائزې کړې دي او ډېرې خبرې د ديوبند له ضده بريلي ناجائزې کړې دي دا تعصبات سره شوې دي کوم کار چې ديوبندي کړې که سم کار وي هم بريلوي ورسره نه دي منلې کوم کار که بريلوي کړې که هغه سم کار وي هم ديوبندي ورسره نه دي منلي نو دا يوه غټه نزاع جوړه شوې دې امت کې تفرقه ده .

نو دغه طريقه باندې بحث ورسره جوړ کړه ته به کيني دلايلو ميدان ته به هغه وغورځوي که بيا يې مکروه ثابت نه کړې شو تا نه يې دلائل غوښتل واي ته ووايه چې دعاء بعد السنة مکروه نه ده بيا دعوی زه پرېږدم دلائل به زه وايمه اوس خو زه سائل يمه ته مدعي يې او که دا يې درته ويلي چې دليل په نافي باندې وي نه په مثبت باندې وايي د ځان نه لگيا يې دا اصل راته وښايه دليل په مثبت وي نه په نافي .

که دا خبره یې درته وکړه دا خبره نشته په کتبو کې خبره داده چې دلیل په مدعي وي نه په سائل ته مدعي جوړ شوې یې کنه دلیل په تا دي اوس ته د حکم ایجابي نه یې د حکم سلبي مدعي یې دعاء بعد السنة لیس بثابت یا غیر جائز دا دعوی ده کنه خو صرف ایجابي نه ده سلبي ده ته ددې دعوی مثبت یې زه سایل یمه او دلیل په تا باندې دي چې بنه دي ستړې کړو او دې ته دې جوړ کړو چې بس ما ثابته نه کړې شوه.

څه وایي چې ثابته دې نه کړې شوه نو دعاء بعد السنة مکروه نه ده شرک کفر حرام خو دي هسې هم نه دي وزته ویلي مکروه دي ویلي وه مکروه نه ده ناجائز به یا حرام وي یا کفر یا شرک وي یا مکروه چې دا مکروه هم نه شوه نو خپله غیر جائز نه شوه نو چې غیر جائز نه شوه نو جائز خپله شوه ما ته د دلیل څه ضرورت دي څه خپل کار کوه نو چې غیر جائز نه دي جائز خپله شوه کنه دواړه خو نه شي جمع کیدلې او که غیر جائز وي رتبه ورکړه ثابت یې کړه.

نو هغه روایت د ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې د سحر سنتو نه بعد نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دعاء کړې ده صحیح ابن خزیمه جلد ۲ صفحه ۱۶۵، مسند بزار جلد ۱۱ صفحه ۳۹۴، المعجم الکبیر للطبراني جلد ۹ صفحه ۱۵۱، دعوات الکبیر للبیهقي جلد ۱ صفحه ۵۱ کې را اخیستي دي او روایت د ترمذي چې کوم راغلې دي بیروتي چاپ جلد ۵ صفحه ۴۸۲ کې هغې کې د سحر د سنتو ذکر نشته صلواة مطلق راغلې نو هغه کې تهجد هم داخل شو:

**عن ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ انه کان ربما بات عند النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فکان النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذا فرغ من صلواته جلس فدعاء بهذا الدعاء اللهم اني اسألك ان تهب لي.**

خو چونکې دعاء همغه دعاء ده دا دې هم حمل شي په بعد سنن باندې.

امام بیهقي په جلد ۱ صفحه ۵۱ کې باب لګوي: **باب الدعاء بعد الفراغ من رکعتي السنة قبل صلواة الفجر**، د سنتو د فجر نه بعد دعاء باندې باب لګوي بیا دا حدیث ذکر کوي:

دارنګې حلیة الاولیاء جلد ۴ صفحه ۲۳۵ معراج ته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ روان وو موسی علیه ته ورسیدلو:

**فأتیت علی رجل قائم یصلي.** راغلو یو شخص ته ولاړ دې مونځ کوي.

**فقال: من هذا معك یا جبرئیل؟**

مونځ يې چې خلاص کړو دا څوک دي يا جبرائيل عليك السلام .

قال هذا أخوك محمد ﷺ فرحب بي و دعا لي بالبركة . مرحبا يې راته وويل او دعاء يې راته وکړه .

دا دې مونځ وشو د مانځه نه وروسته دعاء ده او انبياء عليهم السلام خواص دي که عوام تول وګوره دنيا نه چې لاړ شي مکلفات ختم شي فرض ختم شو څه چې کوي نوافل وي نو دا دعاء بعد النوافل ده او د نوافلو او د سنتو يو حکم دي .

و قال سل لأمتك اليسر قال فقلت من هذا يا اخي يا جبريل قال هذا اخوك موسى عليه السلام.

نو موسى عليه السلام د نفلو نه بعد دعا کړې ده .

دارنګې د ضحى مونځ د سنتو نه دي ، حلية الاولياء جلد ۸ صفحه ۳۲۶ :

عن أنس بن مالك رضي الله عنه قال كنت مع رسول الله ﷺ في سفر فصل السبحة ثماني ركعات . ۸ رکعته د ضحى لمونځ يې وکړو نوافل .

فقال لما انصرف . کله يې چې مونځ خلاص کړو .

إني صليت صلاة رغبة ورهبة وسألت ربي ثلاثاً . دري سوالونه ترې وکړل .

فاعطاني اثنتين ومنعني واحدة . را يې کړه دري او منع يې کړو يو .

سألت ربي أن لا يبتلي امتي بالسنين ففعل . هغه دري معلوم دي چې زما امت په قحطي مه هلاکوه .

وسألته أن لا يظهر عليهم عدوهم ففعل . زما په امتيانو باندې دشمن ما غالب کوه په دائمي طريقه ففعل .

وسألته أن لا يلبسهم شيعاً فأبى علي . او دا سوال مې وکړو چې دوي خپلو کې سره توټه کوه مه انکار يې راته وکړو قبوله نه شوه نو دلته د ضحى د مانځه نه وروسته دعاء شوې ده او دري دعاګانې شوې دي نبي اکرم ﷺ کړي او دا نوافل دي حکم د نوافلو واحد دي .

دارنګې حلية الاولياء جلد ۲ صفحه ۳۰۱ :

عن أنس ابن مالك رضي الله عنه قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا سلم من صلاته . كله به چې نبي عليه السلام سلام وګرځوه .

ومسح جبهته بيده اليمنى . تندي مبارک به يې په ښي لاس باندې مسحه کړو .

وقال بسم الله الذي لا اله الا هو الرحمن الرحيم اللهم . وړپسې طويله دعاء ده ما اختصار کړې دي بيا به يې دا دعاء وکړه نو دا دعاء ده بعد التسليم سلام به يې چې وګرځوه نو دعاء به يې کوله د دوي هغه جزيه پرې باطليږي چې دوي بالکل د سلام نه بعد نن صباء د دعواتو منکر دي دې روايـاتو سره د دوي څه چون چرا نشته سوا د دې نه چې وايي به دا انفرادي ده اجتماعي به وروسته راشي باب پرې لګوم .

دارنګې دعاء لابن فضيل جلد ۱ صفحه ۱۹۶، ۱۴۶ :

حدثنا ابن فضيل حدثنا العلاء بن المسيب عن ابيه جاء رجل الى عبد الله بن مسعود . ابن مسعود رضي الله عنه ته يو شخص راغې .

فقال اني لا اصل الى امرأتي . بي بي ته رسيدګي نه شم کولې کيدې شي نوي وَاده يې کړې وه .

قال له توضأ ثم صل ركعتين . اودس وکړه دوه رکعته لمونځ وکړه .

ومُرها ان تصلي خلفك . او بي بي ته هم امر وکړه چې تا پسې وروسته مونځ وکړي دا نوافل دي .

فاذا فرغت من صلاتك . چې مونځ نه فارغ شوې نو دا دعاء وکړه :

اللهم بارك لي في اهلي وبارك لاهلي في وارزقني منهن وارزقهن مني اللهم ما جمعت بيلنا فاجمع بيننا في خير واذا فرقت ففرق في خير .

نو دا تعليم ورکول دي د مانځه د نفلو او خپله بي بي ځان پسې ودرول دي او د هغې نه بعد دعاء ده چې خاوند او ښځه به دواړه د دغې نفلي مونځ نه وروسته دعاء کوي په شريکه .

دارنګې مسند احمد جلد ۳ صفحه ۳۲۴ :

حدثنا حسن حدثنا ابن لهيعة حدثنا ابو الزبير عن جابر ان رسول الله ﷺ قال اذا ثوب بالصلوة فتحت ابواب السماء واستجيب الدعاء .

اثابت د مانځه چې کله وشي د اسمان دروازې خلاصې شي دعاء ګانې قبليږي که دا څوک وايي چې دعاء خو مطلق ده هر وخت يې کوه دغه وختونه دي ولې خاص کړې دي د مانځه نه وروسته وغيره ځکه چې دې وخت کې دعاء ښه قبليږي اقامت چې وشي د اسمان دروازې خلاصې شي .

دا رنګې حلية الاولياء جلد ۳ صفحه ۵۴ دې حديث ته لږ متوجه شي چې دا څومره صريح دي په دعاء بعد الصلواة کې :

حدثنا احمد بن خالد بن مسرح الحراني حدثنا معلل بن نفيل الحراني حدثنا محمد بن محصن العُکاشي حدثنا الاوزاعي قال سمعت سليمان بن حبيب المحاربي يقول سمعت ابا امامة الباهلي يقول قال رسول الله ﷺ اذا اقيمت الصلاة فتحت ابواب السماء واستجيب الدعاء .

اقامت چې وشي د آسمان دروازې خلاصې شي دعاء قبليږي .

فاذا انصرف المنصرف من الصلاة . چې کله مونځ کوونکې راګرځيدونکې له مانځه نه راوګرځيږي .

ثم لم يقل . او دعاء ونه کړي چې :

اللهم أجرني من النار . اللهم ادخلني الجنة . اللهم زوجني من الحور العين . دري دعاء ګانې وشوې يوه طلب د خيرات وشوه دويمه اجتناب د شرونو نه وشوه او دريمه مطالبه د حاجاتو شوه .

دا پنجپير ملا چې وه دا ډير مداري وه چالاکه وه نو مايې يو کيسه اوريدلو نو هغې کې خندا ګانې کړې وې دې اهل سنتو پسې نو بيا په دې خندا ګانو کې دې ته راغلې وه وايي اخوند به ودريږي يو دعاء به وکړي نخرې کوي وربسې بيا به وايي وايي دعاء خير لکه هغه اخونان اواز کوي کنه نو هلکه هغه مخکې دې وايي د شر دعاء کړې چې اوس د خير دعاء

کوي نو دا تعصب دي مخکې هم د خير وه دا هم د خير ده هغه خير اخروي دي دا خير دنيوي دي فرق و کړه کنه هغه اخروي خير وه او س دنيوي خير غواړي دغلته درې دعاګانې دي کله چې منصرف د مانځه نه روا ګرځيږي .

**ولم يقل:** او ونه وايي دا دعاء چې : **اللهم اجرني من النار . اللهم ادخلني الجنة . اللهم زوجني من الحور العين قالت النار.** نو اور ورته وايي دا دعاء نه کولو والا ته اور وايي جهنم پرې آواز کوي :

**يا ويح هذا . يا هلاک شي .**

**اعجز أن يستجير الله من جهنم.** عاجز دي دا سړي چې د جهنم نه پناه وغواړي د خداى تعالى نه پناه وغواړي د جهنم نه .

**وقالت الجنة .** جنت هم پرې آواز وکړي .

**ياويح هذا .** اى هلاک شي .

**اعجز أن يسأل الله الجنة .** عاجز دي له دې نه چې وغواړي له خداى تعالى نه جنت .

**وقالت الحور العين .** حور عين د جنت نه پرې اواز وکړي .

**يا ويح هذا . يا هلاک شي .**

**اعجز أن يسأل الله ان يزوجه من الحور العين .**

عاجزه يې ددې نه چې د نکاح د حور العين سوال دې کړې واي دا صريح په دې کې چې مونځ کوي نو دعاء کوه چې دعاء نه کوي :

**اذا انصرف المنصرف من الصلوة ولم يقل .**

ګوري درې دعاګانې دي نچوړ به يې څه وي .

**اللهم اجرني من النار ،** استعاذه ده له شرونو نه .

**وادخلني الجنة .** طلب دي د خير اخروي .

**وزوجني من الحور العين .**

دا هم اخروي طلب دي خو تعلق تريو څه نفساني امورو لري نو دا دري واړه بيا پري آوازونه کوي دا به څوک وبنايي چې چا دعاء وکړه جهنم پرې آواز کوي چې هلاک شي او يا جنت پرې آواز کوي چې هلاک شي نه.

اذا انصرف المنصرف من الصلاة ولم يقل، دعاء يې ونه کړه نو دا دعاء به کيږي.

دا حديث سنن الکبری د نسائي را اخيستي جلد ۹ صفحه ۳۳، مسند ابي يعلی را اخيستي جلد ۴ صفحه ۱۳۶ کې معجم الکبير د طبراني را اخيستي جلد ۷ صفحه ۱۰۹، معجم الاوسط را اخيستې جلد ۹ صفحه ۸۳، مسند الشامي را اخيستې جلد ۲ صفحه ۴۱۰، موجبات الجنة د ابن الفاخر الاصبهاني جلد ۱ صفحه ۵۳، باب لړوي: باب في حال من ينصرف في الصلوة ولم يسأل الله الجنة، حال د هغه چا بيانومه چې مونځ وکړي راوګرځيږي او دعاء د جنت ونه کړي دده حال څه دي نو حال يې هغه دي چې کوم بيان شو.

دارنګې الدعاء للطبراني جلد ۱ صفحه ۱۶۷:

حدثنا محمد بن الفضل السقطي حدثنا سعيد بن سليمان عن ابي حازم عن سهل بن سعد رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ساعتان تفتح فيهما ابواب السماء.

دوه وختونه دي د آسمان دروازې په کې خلاصوي.

ويستجاب فيهما الدعاء عند الأذان بالصلاة وعند الصف في سبيل الله عزوجل. چا دا مختص کړي فقط تر آذانه او څه فقهاء دا عام ګڼي دغه ټول وخت د مانځه پورې چې دغې کې دعا قبليږي زمونږ له هغه ځای نه استدلال دي.

دعاء د پاره درود شريف لوستل ضروري دي دليل پرې دغه حديث مبارک دي جزء بي بي يوه زنانه ده هغې ليکلې دي تفسيريې ليکلې دي جلد ۱ صفحه ۴۵:

حدثنا ابو علي اسماعيل بن العباس بن محمد الوارق ببغداد حدثنا الحسن بن عرفة العبدي حدثني الوليد بن بكر ابو خباب عن اسلام الخراز عن ابي اسحاق السبيعي عن الحارث عن علي عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: ما من دعاء الا بينه وبين الله عزوجل حجاب.

داسې دعاء نشته مګر مينځ دده او د خدای تعالی کې څه حجاب وي.

حتی یصلي علی محمد ﷺ . تر دې چې درود ووایي .

فاذا صلی علی محمد ﷺ انخرق الحجاب واستجیب الدعاء . دعاء قبوله شي .

واذا لم یصل علی النبي ﷺ لم یستجب الله الدعاء . خدای تعالی دعاء نه قبلوي

نو درود لوستل ورسره ضروري شول .

امین الله پشاوري وهابي فتاوی لیکلي د بریلویانو مشرکینو نښې یوه نښه یې داده

چې امسا به ګرځوي بله نښه یې داده پټکي به یې په سر وي همسا د ټولو انبیاو سنت دي .

﴿ هِيَ عَصَايَ أَتَوَكَّأُ عَلَيْهَا ﴾ . هغه د موسی علیه السلام حالات ښکاره دي پټکي د نبي

علیه السلام نه متعددو آحادیثو کې ثابت دي او بیا وایي دغه فتاوی کې چې امام به :

﴿ إِنَّ اللَّهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّونَ عَلَى النَّبِيِّ ﴾ ووایي او مقتدیان به یې درود وایي داد

بریلویانو مشرکینو نښه ده آخر کې وایي دوي پسې مونځ نه کیږي دا ددوي فتاوی ده او دا

یې انصاف دي احادیث څه وایي چې درود ونه وایي نو دعاء دې نه قبلیږي او دې وایي چې

درود وایي نو بریلوي مشرک درنه جوړیږي .

دارنګې شرح د ابن بطال جلد ۱۹ صفحه ۱۲۶ :

وروي عن النبي ﷺ انه قال وضعت الصلوة في خیر الساعات . مونځونه چې وضع

شوي په بهترین وختونو کې وضع شوي .

فاجتهدوا في الدعاء دبر الصلواة . د مانځه نه وروسته په دعاء کې کوشش کوي د دبر

اطلاق مخکې د سلام نه هم کیدې شي او بعد هم کیدې شي .

دارنګې سنن ابي داود جلد ۱ صفحه ۵۶۱ :

حدثنا ابو عوانة عن عثمان بن المغیرة الثقفي عن علي بن ربیعة الاسدي عن اسماء بن

الحکم الفزاري قال سمعت علیاً رضي الله عنه یقول کنت رجلاً اذا سمعت من رسول الله ﷺ

حدیثاً نفعني الله منه بما شاء أن ینفعني واذا حدثني أحد من اصحابه استحلفته فاذا حلف لي

صدقته قال وحدثني أبو بکر وصدق أبو بکر رضي الله عنه انه قال سمعت رسول الله ﷺ

یقول ما من عبد یذنب ذنباً .

داسې بنده نښته چې ګناه وکړي .

فيحسن الطهور . اودس ښکلې کړي .

ثم يقوم فيصلي ركعتين . دا فرض نه دي غير فرض دي .

ثم يستغفر الله الا غفر الله له . نفلي مونځ وکړي او د هغې نه بعد دعاء وکړي مګر خدای تعالی به بخښنه ورته کوي .

دارنګې ابي داؤد جلد ۱ صفحه ۴۹۹ رحمت عالم ﷺ فرمايي :

الصلاة مثنى مثنى . دا فرضي نه يادوي نوافل غير فرضي دي مونځ دوه دوه رکعته دي طريقه يې داده :

ان تشهد في كل ركعتين . هر دوه رکعتو کې به کيني تشهد به کوي .

وأن تَبَاءَسَ . عاجزي به کوي .

وتمسكن . او ځان به فقير حسابوي .

وتقنع بيديك ، اى ترفع . اوچتوي به لاسونه .

وتقول . ته به وايې :

اللهم اللهم فمن لم يفعل ذلك فهي خداج . چا چې دا کار ونه کړو مونځ يې ناقص دي . اوس ګڼدا څوک حملوي د سلام نه په مخکې دعاء نو داد چا مذهب دي چې د سلام نه مخکې په دعاء دي په رفع د لاسونو قائل شي د هيچا مذهب هم نه دي .

د تقنع بيديك لاسونه به اوچت کړي د دې جملې نه معلوميږي چې داد سلام نه وروسته ده مونځ به وکړي او فرض هم نه دي نوافل دي دوه دوه رکعته دي سنت دي .

فمن لم يفعل ذلك . که دا کار چا ونه کړو .

فهي خداج . نو مونځ يې ناقص دي .

دا حديث سنن دار قطني را اخيستې جلد ۲ صفحه ۲۸۹ کې سنن الکبری د بيهقي را اخيستې جلد ۲ صفحه ۴۸۸ ، دارنګې المعجم الکبير د طبراني جلد ۱۳ صفحه ۲۲۹ :

عن عبدالله بن نافع بن العمياء عن ربيعة بن الحارث عن الفضل بن العباس رضي الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: الصلاة مثنى مثنى تشهد في كل ركعتين وتضرع وتخشع وتمسكن وتقنع بيديك يقول ترفعها الى ربك.

لاسونه دې اوچت کړي:

تستقبل بوجهك وتقول يا رب يا رب فمن لم يفعل ذلك فهو خداج.

تستقبل بوجهك. مخ ته به دا لاسونه مخامخ کړي بطون د لاسونو به مخ ته شي او وايي به يا رب يا رب يعني دعاګانې به کوي.

دا حديث مشکل الاثار جلد ۳ صفحه ۱۲۴، دارنګې مسند احمد بن حنبل جلد ۲ صفحه ۴۴۲، د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت مذکور دي.

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من لا يسأله يغضب عليه. څوک چې د خالق نه سوال نه کوي خالق په غضب وي هغه ته.

دا عام دي ځکه چې هر څوک سوال نه کوي هغه په کې داخل دي ټولو افرادو لره عام دي يو ځاي کې عامه دعاء شروع ده او يو څوک دعاء نه کوي هغه دغه حکم کې داخل دي هغوي عاجزي کوي خپل خالق ته او دا کس يې نه کوي.

دا تبليغي حضرات هم داسې وي دوي به امام پسې ودريږي مانځه نه بعد هغه پاڅيږي سنتو ته او دې به شروع وي سبحان الله الحمد لله دې ته به نښتي وي او ايات کرسي به وايي نور خلک به سنت کوي دومره شيخ نه دي چې دې دومره ذاکر دي دا فقط هغه وروسته دعاء بهيئت الاجتماع چې کيږي هغې نه ځان پټوي چې وروستو له هغو سره ګير نه شمه.

چې کله امام او خلک دعاء ته لاسونه پورته کړي او دعاء شروع شي نو دې به ودريږي سنتو ته بيا دده ضمير دادې مونږ ورته بدعتيان ښکارو دې چې دا قبلې ته مخامخ بعد الفرض ناست دي ځان سني ګڼي مونږ به وروسته د حضرت عمر رضي الله عنه فتوى پيش کړو چې جلوس سلام نه بعد مخامخ قبلې ته دا بدعت دي دا ځاي پريږده بهر ته چيرته لاړ شه ته چې دې صف کې ناست يې قبلې ته مخامخ او دا طول مکث کوي دا بدعت دي.

دې ته فقهاء مکروه وايي حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ورته بدعت وايي نو خپله په بدعاتو کې اخته دي او ځان بيا متبع سنت ګڼي او مونږ ورته بدعتيان ښکارو.

دارنګې الدعاء للطبراني جلد ۱ صفحه ۲۹، انس ابن مالک رضي الله عنه راوي دي:

عن النبي صلى الله عليه وسلم فيما يذكر عن ربه عزوجل.

دا حديث قدسي شو:

يا ابن آدم إنك ان سألتني أعطيتك وان لم تسألني غضبت عليك. اي بني آدم که ته غواړي درکومه يې که نه يې غواړي درته په غضب باندې يمه.

عموماتو کې دوي داخل دي ورته داسې استدلال کوه دا دواړه حديثين ضم کړه او پيش يې کړه چې څوک دعاء نه کوي خالق ورته په غصه وي حديث مونږ پيش کړو ته مونږ ته دا جزيه وښايه چې څوک بعد السنة او بعد الجنازة څوک دعاء کوي او خالق ورته په غصه وي که داسې خاص نه شي ښودلې عام وښايه که څوک دعاء کوي نو رب ورته په غصه وي لکه مونږ چې عام ښايو چې دعاء څوک نه کوي خالق ورته په غصه وي هغه ته او چې څوک يې کوي:

اجيب دعوة الداع اذا دعان، په هغه رحمت نازليږي دا چې دعاء لپاره ثناء او درود وويل مخکې لازمي دي.

سنن الترمذي جلد ۵ صفحه ۵۱۶ بيروتي چاپ دا معروف حديث دي ټولو کتبو را اخيستې دي، فضالة بن عبيد يې راوي دي.

قال بينا رسول الله صلى الله عليه وسلم قاعد اذا دخل رجل فصلى فقال اللهم اغفر لي وارحمني. دې ځای کې اګر که بعضې محدثين دا را اخلي چې داد تشهد دعاء ده محدثين دي فقهاء دي په قول يې اعتماد په کار دي خولږ سوچ هم ورکې په کار دي چې دوي دا خبره ده سلام نه په مخکې دعاء حملوي دې وروستنې جواب ته ګوري او مخکنې الفاظو ته سوچ نه کوي:

اللهم اغفرلي وارحمني اذ دخل رجل فصلى. را داخل شو يو سړي پس مونځ يې وکړو.

فقال. پس وي ويل:

دا فاء د څه د پاره وي د تعقيب مع الوصل لپاره وي کنه ما وويل چې محدثين دا په قبل السلام حملوي چې ده تشهد کړې او هغلته يې درود نه دي ويلې دعاء يې کړې ده نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ راغوښتې طريقه يې ورته ښودلې ده.

خو زه وايم که دې الفاظو ته وکتلې شي يو اځې هغې پورې خاص کول نه دي په کار دا په بعد السلام هم حمليدلې شي څنګه:

اذ دخل رجل فصلى. مونځ يې وکړو.

فقال. پس وې ويل نو دا فاء د تعقيب مع الوصل لپاره ده.

دا دليل ددې دې چې دا دعاء يې د سلام نه بعد کړې ده يو د فاء نه معلوميږي، دويم دا چې تشهد په دعاء کې جهر د هيچا مذهب هم نه دې هغه خو سرې پټه وايي نو چې پټه يې وايي خلکو ته څنګه معلوم مه شوه چې درود يې ونه ويلې يا يې ويلې او هر چې د سلام نه بعد دعاء ده په هغې باندې خلک جهر هم کوي کله، بهر حال دواړه دې مراد شي محدثين اخيستې مونږ رد نه کوو.

فقال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عجلت ايها المصلي. اى مونځ کوونکې جلتې دې وکړه دعاء خو يې کړې وه بيا هم ورته وايي جلتې دې وکړه.

اذا صليت. کله دې چې مونځ وکړو. فقعدت. پس کيناستې.

فاحمد الله بما هو اهله. ثناء ووايه. وصل علي. په ما درود ووايه.

ثم ادعه. بيا ترې دعاء غواړه. ثم صلى رجل آخر بعد ذلك. بيا يو بل سړي مونځ کوه.

فحمد الله. ګوره دلته هم فاء د تعقيب مع الوصل لپاره ده پس ثناء يې وويله.

وصلى على النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. درود يې وويل چې درود يې خلاص کړو.

فقال له النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ايها المصلي ادع تجب. غواړه دعاء قبليږي.

محدثين داد قبل السلام پورې لګوي خو دې الفاظو نه د بعد السلام اخذ کيدې شي چې هغې ته دې هم دا عام شي د هغې نه بعد هم په کار داده چې سړي جلتې ونه کړي هغه شخص خو دعاء کړې ده دوي خو دعاء هم نه کوي منډې وهي، هرولة باب جاري کوي.

دا رنګې سنن الترمذي جلد ۵ صفحه ۵۲۶ ، حضرت ابي امامة رضي الله عنه يې راوي دي:
قال قيل لرسول الله صلى الله عليه وسلم أي الدعاء أسمع ؟ كومه دعاء بنه قبليږي .
قال جوف الليل الآخر ودبر الصلوات المكتوبات .

دې ځاې نه اهل حديث څه استدلال نه شي کولې ځکه هغوي يې د فرضو نه وروسته هم نه مني خو اشاعتيان وايي فرضو پسې شته دي سنتو پسې نشته دي نو بيا دې ځای نه دليل نيسي له دې نه په څو طريقو تاسې جواب کولې شي :

يوه دا چې دلته تپوس د اي الدعاء أسمع شوې دي کومه بنه قبليږي دا دواړه وبنودلې شو اوس دا دليل ددې کيدې شي چې دې دواړو نه اخوا دعاء نارواده د اسماعيت وختونه وبنودلې شو نو دليل ددې خو نه دي چې دې نه غير په بل وخت کې ناجائزه شوله د شپې دعاء اسمع ده نو دا ددې دليل شو چې د ورځې ناروا ده يا دُبر المكتوبة اسمع شوه نو دا ددې دليل شو چې بعد السنة ناجائزه شوله حديث خو له دې نه ساکت دي کنه دا تعصب محض دي چې يو سړې دې نه استدلال کوي په عدم جواز د دعاء بعد السنة باندې او که څوک دا استدلال کوي نو زه به دا استدلال وکړم چې جوف الليل ذکر ده جوف النهار ناجائزه ده دا به څنګه استدلال وي نو يو طريقه د جواب داده چې دلته اسماعيت بنودلې شوې ده او دا دليل ددې نه وي چې ګنې بغير ددغه وختونو نه بالكل قبليږي نه نفي د اسماعيت چې راغله نو نفي د نفس قبول خو ثابته شوه .

او دويم دا چې دبر الصلوات المكتوبات دا د دُبر لفظ يلې جزء من الشي باندې اطلاق کيږي اګر که دُبرِ اضافي چې واخيستلې شي په معنې د بعد اطلاق کيدې شي اصلاً دُبر يلې جزء من الشي وي هغه وروسته د خوا نه چې د چا نه جزء وي هغې ته دُبر ويلې شي حقيقي معنى يې داده او اطلاق په بعد باندې او بعد السلام باندې حقيقت نه دي مجاز دي .

لکه تاسو د دُبر معنى په يلې جزء من الشي سره وکړي او اشاعتي يې نه مني چې نه دا معنى يې نه ده وايه چې دا معنى يې نه ده نو ته دُبر لري او که نه يې لري که نه يې لري وايي نه خو څه بله بلا يې او که لري يې نو دا ستا نه جزء دي او که نه دي که نه د صدر بي بيانو غوندې

توپ دي ځان پورې تړلي دي خو يلي جزء من الشيء ته دُبر ويلې شي کنه چې د وروسته خوا نه وي او جزء وي دا دبر دي نو دبر الصلوة المکتوبة د سلام نه مخکې چې کومه دعاء کيږي هغې ته شامله ده :

اللهم ربنا آتنا في الدنيا حسنة الخ او لکه په نورو حديثو کې مذکورې دعاگانې شته دي هره دعاء چې وي دغه وخت نبي اکرم ﷺ ښودلي دي چې دا دعاء اجوبه ده اسمع ده دلته ښه قبليږي باقي دې نه غير بل وخت ناجائز نه ثابتيږي هغه هم ښه قبليږي خو دا ډيره ښه قبليږي دغه يې مقصد دي .

او دريم تاويل دې دا شي که د دُبر معنى مجازي واخيستلې شي په معنى د بعد سره بعد هم بعديت يې حقيقي نه شي اضافي شي نو بيا دُبر په معنى د بعد باندې شو بعد حقيقي مه اخله اضافي واخله نو بعد السنة چې دې وکړه هغه بعد الفرض ده دبر المکتوبات بعد المکتوبات يا به يلي جزء اخلي .

هغه ما چې مخکې کومه معنى کړې نو ستا په دعوى دليل نه دي بيا او يا به يې مجازي معنى اخلي مجازي معنى د دُبر بعديت دي دغه بعديت بيا حقيقي اخلي او که اضافي دا اضافي واخله ولې چې حديث دعائشې بي بي سره تکراو رانشي چې :

کان النبي ﷺ اذا سلم لا يقعد إلا مقدار اللهم انت السلام منك السلام تبارکت يا ذالجلال والاکرام .

د ترمذي حديث دي ، نبي اکرم ﷺ سلام نه بعد قعود نه دې کړې سوا د دغې الفاظو نه او ته ترې دلته دا ثابتوي چې بل ته يې تعليم دا ورکړې چې دعاء اجوبه ده نو بايد کړې واي کنه نو تطبيق به دا شي چې دغلته به يا دُبر په قبل السلام حمل شي چې دا د دبر خپله معنى ده يا که دُبر په معنى د بعديت سره شي نو بعديت يې بعديت حقيقي مه اخله مجازي يا اضافي واخله د بعديت اضافي په بعد السنة باندې اطلاق کيږي .

لکه دا سنت بعد الفرض دي دا دعاء بعد السنة ده نو دا دعاء بعد الفرض شوه که قبل الفرض شوه خو بعد الفرض شوه کنه خو بعديت حقيقي اتصالي نه دي اضافي دي دغه يوه

واسطه ترې نه لرې کړه بعد الفرض خو شوه کنه.

نو که دې درته وايي چې بعديت اضافي نه منم نو ته ورته بيا دليل کې قرآن عظيم الشان نه ۲٦ پاره سورة احقاف پيش کړه د پيريانو حکايت دادی مونږ ايمان راوړې دي هغه پيريان چې قوم ته لاړل دعوت چلوي مونږ ايمان راوړو په څه مو ايمان راوړو په يو کتاب باندې چې نازل شوې دي. **من بعد موسى**. وروسته د موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ نه.

۲٦ سيپاره کې لفظ د **من بعد موسى** راغلې دي اوس قرآن عظيم الشان **من بعد موسى** نه دي که من بعد عيسى نه دي دې باندې اطلاق د من بعد موسى په بعديت اضافي کيږي که بعديت اضافي وانخلي حقيقي اتصالي اخلي.

نو دا بيا **من بعد عيسى** دي نو دا اطلاق د **من بعد موسى** پرې څنګه وشو خو عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ بعد موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ دي قرآن کريم بعد عيسى عَلَيْهِ السَّلَامُ دي واسطه لرې کړه نو بعد موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ خو صرف بعديت اضافي شو.

دا رنګې مسند احمد بن حنبل جلد ۵ صفحه ۳۹:

**ان النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كان يقول في دبر كل صلاة اللهم اني اعوذبك من الكفر والفقر وعذاب القبر.**

دا دعاء تاسو ته مخکې ما ذکر کړه چې دُبر يلي **جزء من شيء** سره واخله په قبل السلام يې حمل کړه دا دعاء ټولو کتب الحديث د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د سلام نه په مخکې دعاء حمل کړې ده او لفظ د دُبر په کې راغلې دي دا مې دې لپاره دلته راوړه متصل چې دُبر په معنى د يلي **جزء من الشيء** سره په دغه حديث کې مذکور دي.

صحيح دي دُبر په معنى د بعد هم مذکور دي **دبر الصلوة سبحان الله الحمد لله** هغه په قبل السلام نه حمليږي خو هغه د دُبر حقيقي معنى نه ده مجازي معنى ده او د حقيقي معنى حمل چې امکان وي مجاز ته تلل دا د چا قول کيدې شي.

هر کله چې سلام نه مخکې دعاء اجوبه باندې ددې حمل کيدې شي څه ضرورت دي چې ته يې مجازي معنى اخلې مجاز ته تلل خو د ضرورت پر بناء وي حقيقت متعذر شي هغه ځاى

كې سړي مجاز ته ذهاب کوي او جمع بين الحقيقة والمجاز هم زمونږ اصل نه دي چې حقيقي
معنی واخیستل شوه نو اوس مجازي د سره اخیستل کیږي نه .
دارنګې عمل اليوم والليلة جلد ۱ صفحه ۲۲۱ :
اخبرني علي بن محمد المربعي حدثنا ابراهيم بن القعقاع حدثنا عاصم بن يوسف حدثنا
قطبة بن عبدالعزيز عن الاعمش عن عبيدالله بن زحر عن علي بن يزيد الالهاني عن القاسم
عن ابي امامة قال مادنوت من رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في دبر صلاة مكتوبة ولا تطوع الا سمعته
يقول .
نه یم نږدې شوې نبي عَلَيْهِ السَّلَام ته په وروسته د مونځ فرض یا نفل کې مګر ما ترې
اوریدلې چې ویل به یې :
اللهم اغفرلي ذنوبي وخطاياي كلها اللهم انعشني واجبرني واهدني لصالح الاعمال والاخلاق
فانه لا يهدي لصالحها ولا يصرف سيئها الا انت – دبر الصلاة عقبها –.
معنی یې دا کړې اهل لغتو وروسته د هغې نو دې تولو ځایونو کې دا دُبر په یلي جزء
من الشيء باندې حملیږي هغې کې دا دعاء شوې ده .
دارنګې سنن الکبری للنسائي جلد ۹ صفحه ۴۷ :
اخبرنا محمد بن عبدالله بن يزيد قال حدثنا ابي قال حدثنا حيوة بن شريح قال سمعت
عقبة بن مسلم التجيبي يقول حدثني ابوعبدالرحمن الحبلي عن الصنابحي عن معاذ بن جبل
ان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخذ بيده يوما ثم قال يا معاذ والله اني لأحبك .
د حضرت معاذ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت ده چې یوه ورځ نبي عَلَيْهِ السَّلَام زما لاس ونیوه بیا یې
وویل : والله زما له تا سره مینه ده .
فقال له معاذ بابي انت وامي يا رسول الله وانا والله احبك .
زه هم درسره مینه لرم .
قال . رحمت عالم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته فرمايي :

أوصيك يا معاذ لاتدعن في دُبر كل صلاة ان تقول . وصيت درته كوم چې مه پرېږده وروسته د هر مونځ نه :

ان تقول اللهم اعني على ذكرك وشكرك وحسن عبادتك واوصي بذلك معاذ الصنابحي. داد حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شاګرده وه .

واوصى به الصنابحي اباعبدالرحمن . چې دا دده شاګرد وه .

واوصى به أبوعبدالرحمن عقبة بن مسلم . دا حديث مسلسل شو .

اوس كه هغه ځاى كې دُبر الصلوة نه اشاعتي ضد كوي او بعديت معنى اخلي او يلي جزء معنى نه اخلي مجازي معنى ته ځي بيا بعديت هم اتصالي حقيقي په معنى اخلي اضافي نه مني نو دا لاندې روايت بيا ورته پيش كړي :

ما دنوت من رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في دبر صلاة مكتوبة ولا تطوع الا سمعته يقول . دلته خو فرضو نه هم ثابته شوه او د نفلو نه هم ثابته شوه د نفلو خو تاسو نه مني هلته چې دُبر په بعديت حقيقي اتصالي اخلي خو دلته هم بيا اخلي كنه . اوس څه كوي قبل السلام باندې حملوي نو دا دري واړه استدلالات ستا او زما استدلال نه بهر شول .

زه يې بعد السنة قائل يم او ته يې بعد الفرض قائل يې او دا په قبل السلام حمل شو كه حقيقي معنى نه اخلي مجازي اخلي نو چې مجازي اخلي زه بعد الفرض لره څه نا څه قائل يمه سحر مونځ به مراد وي دمازديګر مونځ به مراد وي او دا دوه ساعات خير د ساعاتو دي دعاء په كې اجوبه ده بعد الفرض دي شي خو في دبر صلاة مكتوبة ولا تطوع ته به بيا دې سره څه كوي بيا .

او دې ته به څه محمل ګوري بعدُ خو به بعديت يې حقيقي واخلي اتصالي به واخلي بعد الفرض ته خو ما ځاى پيدا كړو بعد السنة ته يې اوس ته پيدا كړه ته خو قائل ددې نه يې كنه .

ابن حجر په فتح الباري جلد ١١ صفحه ١٣٤ كې د ابن قيم عبارت نقل كړې دي چې ابن قيم په دعاء باندې رد كړې ابن حجر صاحب وايي چې حنابله او ابن قيم په دعاء رد نه كوي

هغه رد په دې کړې دي چې سلام پسې قبلې ته مخامخ طولاني مکث ناروا دي دا مه کوه نو دې د هغه جواب کوي :

**وفهم كثير ممن لقيناه من الحنابلة ان مراد ابن القيم نفي الدعاء بعد الصلاة مطلقاً و ليس كذلك فان حاصل كلامه انه نفاه بقيد استمرار استقبال المصلي القبلة وايراده بعد السلام .**

ابن قيم چې دعاء نفي کړې ده په دې قيد يې نفي کړې ده چې مصلي قبلې ته مخامخ کيني د سلام نه وروسته او دعاء کوي دا قبلې ته مخامخ ناسته نفي کوي .

**واما اذا انتقل بوجهه** . مخ راتاو کړي .

**او قدم الأذكار المشروعة** . يا مخکې ترې نه نور اذکار وکړي .

**فلا يمتنع عنده الاتيان بالدعاء** . بيا ترې نه وروسته دعاء کول ممنوع نه دي د هغه په نزد .

دا رنګې فتح الباري جلد ۵ صفحه ۲۵۴ :

**واستحب ايضاً اصحابنا واصحاب الشافعي الدعاء عقب الصلواة .**

موږ امامانو او د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ شاګردانو دعاء د مانځه نه وروسته مستحب ګڼلې .

دا رنګې صحيح البخاري جلد ۳ صفحه ۵۳ :

**حدثنا محمد بن المثنى قال حدثني خالد هو ابن الحارث حدثنا حميد عن انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ .**

دا هغه حديث دي چې د ام سليم کور ته نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ تللي وه او نفلي مونځ يې کړې وه او دعاء يې کړې وه په هيئت اجتماعي سره .

**عن انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دخل النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ على ام سليم فاتته بتمر وسمن** . کهجوري او غوړي يې راوړل .

**قال** . رحمت عالم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جواب کوي .

**أعيدوا سمنكم في سقائه** . غوړي خپل لوښي ته واپس کړي .

**وتمركم في وعائه فاني صائم** . زما روژه ده .

ثم قام إلى ناحية من البيت فصلى غير المكتوبة . بيا پاڅيد يو طرف د بيت ته مونځ يې وکړو غير مکتوبه فرض نه دي ګوري دا نوافل او سنن دي .

فدعا . پس دعاء يې وکړه .

لأم سليم واهل بيتها .

دې ځای نه محدثين استدلال کوي چې نبي عليه السلام ام سليم حضرت انس رضي الله عنه دوي په شريکه د نفلو نه وروسته دعاء کړې ده دا دعاء بهيئت الاجتماع بعد غير المكتوبة .

دا رنګې صحيح المسلم معرب بيروتي چاپ جلد ۸ صفحه ۱۷۱ :

حدثنا ابو بكر بن ابي شيبة حدثنا عبد الله بن نمير ح . تحويل د سند .

وحدثنا ابن نمير واللفظ له حدثنا ابي حدثنا عثمان بن حكيم اخبرني عامر بن سعد عن ابيه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم اقبل ذات يوم من العالية . عوالي د مديني منورې باندې وي .

حتى اذا مر بمسجد بني معاوية دخل فركع ركعتين . دوه رکعته لمونځ يې وکړو ګوري دا فرض نه دي نوافل دي سنن دي .

وصلينا معه . مونږ هم ورسره مونځ وکړو .

ودعا ربه طويلاً . اوږده دعاء يې وکړه نبي اکرم صلى الله عليه وسلم سره د صحابو و مونځ کوي غير فرضي او د هغې نه وروسته دعاء کوي .

ثم انصرف الينا فقال صلى الله عليه وسلم سألت ربي ثلاثاً فأعطاني ثنتين ومنعني واحدة .

دغه مبحث چې تير شو په دې کې مونږ دا ثابته کړه چې بعد غير المكتوبة نوافلو نه احاديثو مبارکه وو کې دعوات ثابت دي يا يې تعليم ورکړي يا يې بالفعل دعاګانې کړې دي بس دغه اعتراض به درنه پاتې شي چې ياره بهيئت الاجتماع نه وه هغه به وروسته راشي .

## المبحث الثالث:

## يكره المكث طويلاً في مصلاه بعد الفرض نحو القبلة :

دا باب په دې لګيدلې چې اشاعتيان مونږ ته دا تبليغي حضرات مونږ چې فرض وکړو نو پاځيږو ځاى بدل را بدل کړو يوه غلطي زمونږ عوامو کې هم شته چې کوم ځاى کې فرض وکړي په هغه ځاى کې سنت کوي تول آئمه په دې رد کوي نه امام ته هم په کار دي چې لږ يو خوا بل خوا او خوځيږي مخکې وروسته شي مقتديانو ته هم په کار دي چې لږ يو خوا بل خوا وخوځيږي مخکې وروسته شي مقتديانو ته هم په کار دي چې په خپلو کې ځاى بدل را بدل کړي دې باندې ترغيبي احاديث موجود دي نبي عليه السلام فرمايي :

ايعجز احدكم اذا صلى أن يتقدم او يتأخر او عن يمينه او عن شماله يعني السبحة. سنن ابن ماجة جلد ٤ صفحه ٣٥٢.

عاجز دي ستاسو يو کس چې کله د مونځ نه فارغ شي چې بيا نفل او سنت کوي لږ مخکې شي يا وروسته شي عاجز دي له دې نه يعنې مه عاجزه کيږي له دې نه دا خو دومره سخت کار نه دي داسې يو څه ناڅه تقديم او تاخير وکوي ځاى بدلوي.

اوس مونږ دا دريم مبحث په دې لږولې دي چې څوک سلام وګرځوي او بيا دې وخت کې دي دا تسبيحات وايي او طول مکث طرف د قبلې ته کوي دا بدعت دي مکروه دي دغه وخت د دې شيانو نه دي خاصتاً امام به دا کار نه کوي ډير امامان داسې دي چې اوږده ناسته کوي دغه ناسته ممنوعه ده هم په فقه حنفي کې هم په احاديثو کې راودي ګرځيږي ځاى دې بدل کړي خو دغه ناسته به طولاني فرضو پسې نه کوي متصل.

سنن الترمذي جلد ٢ صفحه ٢٥ پاکستان چاپ جلد ١ صفحه ٣٧:

حدثنا احمد بن منيع حدثنا ابو معاوية عن عاصم الأحول عن عبد الله بن الحارث عن عائشة رضي الله عنها قالت كان رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا سلم لا يقعد الا مقدار ما يقول.

کله به چې نبي عليه السلام سلام وګرځوه نه به کيناسته مګر په اندازه د دې چې ويل به يې.

اللهم انت السلام ومنك السلام تباركت ذالجلال والاكرام.

همدا روایت مسند اسحاق بن راهویه را اخیستې جلد ۳ صفحه ۷۴۶، مسند السراج را اخیستې جلد ۱ صفحه ۲۷۴.

دې ځای کې یوې جزیې ته متوجهې شي هغه دا چې زمونږ دا سني علماء بعضې په دې ځایونو کې رفع د ایدیو کوي لاسونه اوچتوي اللهم انت السلام سره لاس اوچتوي نو دا لاس اوچتول دلته جائز نه دي ولې عام اصول دا دي چې نبي اکرم ﷺ په دعواتو کې لاس اوچت کړي.

۲۴ صحیح احادیث پرې موجود دي په تسبیحاتو ثناء ګانو کې د لاسونو اوچتول نه دي ثابت په ثناء کې به لاس نه اوچتیږي په دعاء کې به لاس اوچتیږي اللهم انت السلام منك السلام تبارکت ذا الجلال والاکرام، ثناء محضه ده دې کې بالکلیه د دعاء څه نشته دي.

که څوک اللهم ته ګوري نو دا خو ندا ده مقصود بالنداء نشته دي څه غواړي دلته فقط یا الله انت السلام یې یا الله منك السلام سلامتیا ده دا ټول خطاب دي د الله سره.

په الفاظو د خطاب کې ثناء ګانې دي نو چې هر کله دا ثناء محضه ده امکان د دعاء په کې بالکلیه نشته دي او په ثناء ګانو کې رفع د لاسونو ثابته نه ده دې کې به لاس نه اوچتوي په دعاء کې که په احادیثو رفع د ایدیو راشي او که رانه شي ته به بیا لاس اوچتوي بیا هیئت د دعاء دغه ده چې رفع د ایدیو به په کې وي دې سره یو بله جزیه هم ښکاره شوه چې په دسترخوان له ډوډي نه وروسته دعاء کول رفع د ایدیو شته او که نشته دي که چیرته څوک په خپل دسترخوان ناست وي د هغې نه بعد به ستا الفاظ دا وي:

الحمد لله الذي اطعمني وسقاني وجعلني من المسلمين، نو دا ثناء ده دعاء نه ده او په ثناء کې د لاسونو اوچتول ثابت نه دي لاس به نه اوچتوي که چیرته په پردي دسترخوان ناست وي او د هغې نه بعد ا الفاظ وایي:

اللهم اطعم من اطعمني واسق من سقاني وغیره دعوات کوي نو هغه بیا دعاء ده او په دعاء کې د لاسونو اوچتول شته نو بیا لاس په کې اوچت کړه دا یې فرق دي او محضې ړانده مقلدین هم ځان نه مه جوړوي چې بس د نور الایضاح په آخر کې څوک دي څه پاڼه یې لیکلي ده هغه ویلي دي آذان پسې دعاء کې د لاسونو اوچتول ناروا ده بدعت ده له ډوډي نه وروسته

دعاء کې د لاسونو اوچتول بدعت دي نه يې علت ويلي او هغه غريب هم په مطلب نه ده پوه
شوي چې دا ولې نو تاسو ما په علت پوه کړي که چيرته دعاء وه که ثابته رفع هم نه وي د دعاء
هيئت دا دی چې لاسونه به اوچتوي او که چيرته ثناء وي بيا به يې نه اوچتوي .
د آذان پسې دعاء کې به لاس اوچتوي او که نه به يې اوچتوي نو هغلته که وګوري :
**اللهم رب هذه الدعوات التامة والصلواة القائمة** تر زياتو الفاظو پورې ثناء ده تغليب د ثناء ته
که وګوري لاسونه مه اوچتوه او که چا اوچت کړه ناروا يې مه ګڼه ځکه ات محمد ن الوسيلة
دعاء په کې راغلې دي دعاء تکړې ته که وکتلې شي رفع د ايديو ناجائز نه شوه د اصولو
خلاف نه شوه بدعات کې نه راځي .

دا حديث چې ما ذکر کړو دې نه استدلال علامه سيوطي کوي او علامه سندي يې
کوي په سنن نسائي شرحه حاشيه جلد ۲ صفحه ۴۱۴ کې :

**ما جاء عن عائشة انه ﷺ اذا سلم لا يقعد الا مقدار ما يقول اللهم انت السلام ومنك السلام تبارکت يا ذا الجلال والاکرام يحمل على ان المراد کان لا يقعد على هيئته مستقبل القبلة أو أنه لا يقعد في صلاة بعدها سنة کذا في حاشية السندي على النسائي جلد ۳ صفحه ۸۰.**

نو دې وايي چې حلبيږي دا په دې باندې چې مراد **لا يقعد على هيئته مستقبل القبلة لا يقعد** نه دي ناست .

اوس احاديثو کې راځي چې د سحر مونځ نه بعد به ناست وه تر اشراقه پورې هغې سره
څه کوي دلته وايي لا يقعد نه دي ناست .

وايي جواب دا دی چې **لا يقعد على هيئته مستقبل القبلة** . قبلې ته مخامخ نه دي ناست
دغو مره به يې وويل راتاوا به شو .

نو دا امام چې مخامخ طول مکث کوي خلاف راغې که رانه غې د دې سنتو او دا عدم
الرواية هم نه دي ددوي په شان دا رواية العدم دي عائشه بي بي وايي دا عمل يې نه دي کړي
دا خو دليل دي په دين کې .

ما سره د طالبي په دوره کې يو اشاعتي بحث وکړو ما ورته دا وويل عدم الرواية او
روايت العدم روايت العدم دليل دي خو عدم الرواية دليل نه دي ځکه دا عدمي محض دي

وجود غير ته نه شي وركولې چې دعوى ده وايي زه به وښايم په هدايه کې چې عدم الرواية دليل نه دي ځکه دا عدمي محض دي وجود غير ته نه شي وركولې چې دعوى ده.

وايي زه به وښايم په هدايه کې چې عدم الرواية به دليل ګرځيدلې وي ما ورته وويل وښايه وايي هدايه ليکي چې د سحر سنت وشي د هغې نه بعد تر فرضو نفل مکروه دي لعدم فعل النبي ﷺ او په عيدګاه کې د اختر د مونځ نه مخکې نفل مکروه دي لعدم فعل النبي ﷺ، دا دواړه الفاظ د هدايې دي لعدم فعل النبي ﷺ.

نو ما ورته وويل په دې دواړو کې روايات شته دي د حضرت علي رضي الله عنه روايت دي چې نبي اکرم ﷺ په عيدګاه کې مونځ نه دې کړي نو دا عدم الرواية شو که روايت العدم دا روايت العدم دي صحابي روايت عدمي پيش کوي چې دا يې نه دي کړي دا خو دين دي دا خو دليل دي په دعاء بعد السنة.

او بعد الجنازة کې دې څوک وښايي چې نبي اکرم ﷺ دا عمل نه دې کړې يا خو دليل دي عدم الرواية دليل نه دي نو يو دا شو چې مستقبل القلبة نه دي ناست راتاو شوې دي دويم دا: انه لا يقعد في صلاة بعدها سُنة، کوم مونځ چې د هغې پسې سنت وي نو لا يقعد نه دي ناست بلکې قيام يې کړې دي که دلته به يې کول دلته يې کړې دي حالت اقلي دا ثابت دي که به کور ته تلو کور کې کړې دي.

دا رنګې حاشية السندي على النسائي جلد ۳ صفحه ۸۰ هم دا ذکر کوي:

**سوال:** افضل الذکر لا اله الا الله وافضل الدعاء الحمد لله، الحمد لله ثناء ده دعاء يې ورته ولې ويلې؟

**جواب:** دا دی چې الحمد لله نه يادوي لکه مونږ او تاسو وايو الحمد لوستل واجب دي نو الحمد واجب دي که سورة فاتحه واجب ده فاتحه واجب ده کنه خو دا الحمد لله د فاتحې نه کنايه ده کنه نو دې حديث مقصد دا چې:

افضل الذکر لا اله الا الله وافضل الدعاء الحمد لله.

يعني افضل دعاء هغه ده چې په سورة فاتحه کې مذکوره ده چې اهدنا الصراط المستقيم هغه دعاء درته يادوي الحمد لله ته دعاء نه ويل کيږي هغه خو ثناء ده يعني افضل دعاء سورة فاتحه ده مراد له الحمد لله نه الفاظ مه اخله دا نوم وګرځوه د يو سورة لپاره هغه سورة يادوي .

دويم روايت چې طول مکث په مصلى باندې جائز نه دي صحيح البخاري جلد ۱ صفحه ۲۱۲ کې :

**حدثنا موسى بن اسماعيل حدثنا ابراهيم بن سعد حدثنا الزهري عن هند بنت الحارث أن أم سلمة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قالت كان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذا سلم قام النساء حين يقضي تسليمه ومكث يسيراً قبل ان يقوم .**

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به چې سلام وګرځوه بي بيانې وروسته صفونو کې وې هغوي به پاڅيدې سلام نه بعد .

**ومكث** . نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ به مکث وکړو .

**يسيراً** . لږ نو دا لږ مکث د طول مکث خلاف شو .

**قبل ان يقوم .**

مخکې د قيام نه پاڅيده به يا د قيام نه مخکې به لږ کيناسته .

دارنګې سنن البيهقي الكبرى جلد ۲ صفحه ۱۸۲ ، دې کې د خلفاء عمل تاته ښايي :

**اخبرنا محمد بن عبدالله الحافظ انبأ ابو جعفر محمد بن محمد البغدادي حدثنا يحيى بن أيوب المصري حدثنا سعيد ابن أبي مريم حدثنا عبدالله بن فروخ انبأ بن جريج عن عطاء عن أنس بن مالك رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قال كان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اخف الناس صلاة في تمام .**

تتميم سره به يې ارکان ادا کول خو آسانه مونځ يې کوه .

**قال وصليت مع رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فكان ساعة يسلم يقوم .**

ما د نبي علیه السلام سره مونځ کړې دي په همغه ساعت کې چې سلام به یې وګرځوه پاڅیده به.

نو طول مکث د دې حدیث او د دې عمل خلاف دي چې هغه لږ مونځ کوي پاڅیږي.

ثم صليت مع ابي بكر رضي الله عنه فكان اذا سلم وثب مكانه. سلام به یې چې وګرځوه توپ به یې کړو په دغه ځای کې.

كانه يقوم عن رضف.

تا به ویل چې په ګرم کاڼي یې خپه ایښي ده.

نو عمل دده هم د طول مکث خلاف دي چې دا کوم خلک اوږده ناسته کوي مخامخ قبلې ته.

دارنګې وروسته روایت پیش کوي:

قال كان ابو بكر الصديق رضي الله عنه اذا سلم قام كأنه جالس على الرضف وروينا عن علي انه سلم ثم قام.

دارنګې عمدة القاري شرح صحيح البخاري جلد ۹ صفحه ۴۳۵:

كان النبي صلى الله عليه وسلم اذا سلم لم يقعد الا مقدار ما يقول اللهم انت السلام ومنك السلام تباركت يا ذالجلال والاكرام وقال ابن مسعود ايضاً كان النبي صلى الله عليه وسلم اذا قضي صلاته انتقل سريعاً جلت به اما ان يقوم. پا به څیده.

واما ان ينحرف. مخ به یې راتاو کړو.

وقال سعيد بن جبير شرق او غرب.

مشرق مغرب ته هلته مشرق مغرب راځي ځکه قبله دا بل طرف ده نو مشرق یې طرف یمین راتلو او مغرب یې شمال طرف راتلو.

ولا يستقبل القبلة.

یعني اکثراً به قبلې ته مخامخ نه راتاویده.

وقال قتادة رضي الله عنه كان الصديق اذا سلم كان على الرضف.

صدیق اکبر رضي الله عنه به سلام وګرځوه پاڅیده به تا به ویل چې په ګرمو کانړو دي.

وقال ابن عمر الامام اذا سلم قام. امام چې سلام وګرځوي پاڅي به.

وقال مجاهد قال عمر رضي الله عنه جلوس الامام بعد السلام بدعة. ذ امام کیناستل له سلام نه وروسته بدعت دي.

البته زمونږ فقهاء دا طول مکث حملوي په مکروه تنزیهي باندې خلاف اولی باندې فقط د صحابه وو د طرز او طریق خلاف عمل یې وکړو.

الاختیار لتعلیل المختار جلد ۱ صفحه ۷۲، د فقهې حنفي کتاب دي:

کل صلاة بعدها سنة یکره القعود بعدها. هر یو مونځ چې د هغې پسې سنت وي قعود بعدها مکروه دي. دا الفاظ مجمع الأنهر هم ذکر کړې دی په جلد ۱ صفحه ۱۹۴ کې.

بل یشتغل بالسنة. په سنتو به مشغول شي.

لئلا یفصل بین السنة والمکتوبة وعن عائشة رضي الله عنها ان النبي صلی الله علیه وسلم کان یقعد مقدار ما یقول اللهم انت السلام ومنك السلام والیك یعود السلام تبارکت یا ذالجلال والاکرام.

ګوره دا الفاظ دي دومره کینه نور مه کینه.

ثم یقوم الی السنة. بیا به سنتو ته پاڅي.

ولا یتطوع مکان الفرض. د فرضو په ځای به نفل نه کوي لږ فصل دې ورکړي ورته.

ولې ځکه چې نبي علیه السلام فرمایي:

ایعجز احدکم اذا فرغ من صلاته ان یتقدم او یتاخر بسبحته.

عاجز دي دې نه چې فرض وکړي بیا نفل کوي چې لږ مخکې وروسته شي نه وي عا یعنې دا دومره سخت کار نه وي هر یو یې کولې شي نو عملي یې کړي.

بیا وایي:

وکذا یستحب للجماعة کسر الصفوف.

جمعه باندې چې خلک ولاړ وي کسر د صفوفو مستحب دي صفونه دې مات کړي

لئلا يظن الداخل انهم في الفرض.
نوي راتلونكي ګمان ونه کړي چې دا ګنې اوس هم په فرضو ولاړ دي اقتداء پسې چيرته ونه کړي علت يې دادی.

دارنګې فقه العبادات جلد ۱ صفحه ۸۷ دي دا جواب کوني چې هلته راغلل:

لايقعد. نه به کيناسته.

اوس هغه حديث چې نبي عليه السلام سبحان الله الحمد لله آيت کرسي الله اكبر د دي ترغيبات ورکړې دي د هغې به څه جواب وي دې وايي:

ولا ينافي أمره صلى الله عليه وسلم المسلمين بالاذكار في دبر كل صلاة الاشتغال بالسنة اولاً ثم بالاذكار.

هيڅ منافات نشته کوم چې نبي عليه السلام امر کړې د مانځه نه بعد په اذکارو طريقه به يې داوي چې اول به سنت وشي بيا به اذکار ووايي.

ولو سبح عقب السنة لكان في دبر الصلواة. او چې کله سرې د سنتو پسې تسبيحات ووايي.

لكان في دبر الصلاة. داد مانځه د فرض نه بعد شو.

همغه زما جواب دي چې بعديت اضافي شو قبل خو نه دي دا هم بعد شو بعديت اضافي شو.

ويكره القعود. مکروه ده ناسته.

عقب كل فريضة بعدها سنة مؤكدة. وروسته د هغو فرضو نه چې وروسته ترې سنت مؤکده وي.

حتى يؤدي السنة ثم يشتغل بالأذكار لأنه يستحب الفصل بينهما بمقدار ما يقول اللهم انت السلام ومنك السلام تباركت واليك يعود السلام تباركت يا ذالجلال والاكرام.

دا الفاظو باندې اوږدوي دې کې چې مزيد کوم الفاظ اخوندانو پيدا کړي هغه الفاظو په احاديثو کې شته خو په دغه ځای کې وارد نه دي.

او دا طول فصل فقهاء مکروه ګڼي دلته دې نه وايي لکه حینا ربنا بالسلام ادخلنا دار السلام الخ دا احادیثو کې شته دي خو دې ځای کې نه دي وارد او هلته فصل مکروه دي نو هغه الفاظ دې ځای ته مه راوړي بس دغه چې کوم ثابت دي دغه لوستل په کار دي او د دې په مقدار دې نه زیاتیدل نه دي په کار.

بعضې د لا اله الا الله ذکر دلته کوي څه روایاتو کې شته ؤي خو بیا دي اللهم انت السلام منك السلام پریږدي ځکه طول فصل مکروه دي په هغه اذکارو دي اکتفاء وکړي چې طول فصل رانه شي.

دلته چې دا کوم یکره یکره زمونږ احنافو ویل دا کراهیت تحریمي نه دي دلیل پرې الفقه على المذاهب الأربعة باب ذکر بعد الصلاة باب لږوي بیا په هغې کې د احنافو مذهب را اخلي.

یکره تنزیها نو دغه مطلق مکروه مکروه مقید شو د فقهې په یو کتاب کې په مکروه تنزیهي سره نو ټوله فقه چې یکره راغې په تنزیه به حمل وي.

نو په فقه العبادات کې د اللهم انت السلام نه بعد به څه وايي:

ثم یقول الى السنة وذلك لما روي عن عائشة رضي الله عنها قالت كان النبي صلى الله عليه وسلم اذا سلم لم يقعد الا بمقدار ما يقول اللهم انت السلام ومنك السلام تباركت ياذا الجلال والاكرام.

او بیا وايي:

فلا ینبغي للمصلي ان یزید علیه او على قدره.

دا لاینبغي دلیل د څه شي شو د کراهیت تنزیهي شو نه دي مناسب مصلي لره چې په دې الفاظو زیادت وکړي او یا د دې په قدر زیادت وکړي په نورو الفاظو کې دې نه زیادت بلا نه کوي:

ولم یثبت عنه صلى الله عليه وسلم انه فصل بین الفرض والسنة بالأذکار التي امر المسلمین بها الا في المغرب.

نه دي ثابت د نبي عليه السلام نه چې د سنت او فرضو په مينځ کې دي په اذکارو فصل راوستلې شي مګر په مغرب کې .

دارنګې مراقي الفلاح شرح نور الايضاح جلد ۱ صفحه ۱۴۷ فرمايي :

القيام الى اداء السنة التي تلي الفرض متصلاً بالفرض مسنون.

پاڅيدل ادا د سنت ته چې فرضو پسې متصل دي مسنون أداء د سنت دي .

اي انه يستحب الفصل بينهما كما كان عليه السلام اذا سلم يمكث قدر ما يقول اللهم انت السلام ومنك السلام واليك يعود السلام تباركت يا ذالجلال والاكرام .

دا دوه ټکي په کې زيات شول خو د فقيه په عبارت د نص الحديث کې چې زيادت راشي دده قول ته به اعتبار نه وي د محدث قول ته به اعتبار وي .

انزل الناس منازلهم .

هر چا ته خپله رتبه ده يو محدث چې يوه فقهي جزيه د صاحب د مراقي په مقابله کې وکړي کله دومره اهميت لري په فقه کې دې ماهر دي خو په نص الحديث کې بيا دې هغه ته نه شي رسيدلې دلته دوه ټکي زيات شول .

اليك يعود السلام .

بل :

تباركت يا ذالجلال والاكرام . کې دا يا نشته دي په معروف حديث کې .

تباركت ذالجلال والاكرام . لکه مخکې حديث ذکر شو .

ثم يقوم الى السنة . بيا به سنت ته پاڅي .

قال الكمال وهذا هو الذي ثبت عنه صلى الله عليه وسلم من الاذكار التي تؤخر عنه السنة ويفصل بينها وبين الفرض .

# المبحث الرابع : الدعاء بهيئة الاجتماع :

دعاء بهيئة الاجتماع دليل د قرآن عظيم الشان چي تاسو نيسي د سورت يونس آيت ۸۸ او ۸۹ پرې دليل دي دلته موسى عَلَيْهِ السَّلَام دعاء كوي :

﴿وَقَالَ مُوسَىٰ رَبَّنَا إِنَّكَ آتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَأَهُ زِينَةً وَأَمْوَالًا فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا رَبَّنَا لِيُضِلُّوا عَن سَبِيلِكَ رَبَّنَا اطْمِسْ عَلَىٰ أَمْوَالِهِمْ وَاشْدُدْ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوا حَتَّىٰ يَرَوُا الْعَذَابَ الْأَلِيمَ﴾

دا دعاء بنيري يې وكړي .

﴿قَالَ﴾ رب كريم ورته فرمايي :

﴿قَدْ أُجِيبَت دَّعْوَتُكُمَا﴾ ستاسو دواړو دعاء قبوله شوه .

﴿فَاسْتَقِيمَا وَلَا تَتَّبِعَانِّ سَبِيلَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾

هلته لاړ شه .

قال موسى . دلته وايي :

اجيبت دعوتكما . دعاء موسى عَلَيْهِ السَّلَام كړې جواب كې راځي دعاء ستاسې دواړو قبوله شوه هارون عَلَيْهِ السَّلَام او موسى عَلَيْهِ السَّلَام نو هارون عَلَيْهِ السَّلَام خو دعاء نه وه كړې دده دعاء څنګه قبوله شوه مفسرين متفق دي دلته چې :

كان موسى يدعو وهارون يؤمن . موسى عَلَيْهِ السَّلَام دعاء كوله هارون عَلَيْهِ السَّلَام امين ويلې .

والداعي والمؤمن شريكان .

دعاء والا او امين والا شريك في الدعاء دي .

نو دا دليل د دعاء بهيئت الاجتماع دي دعاء بعد الصلواة مخكې مونږ ثابته كړې ده شبهه دوي سره د دعاء بهيئت الاجتماع ده د دعاء بهيئت الاجتماع باره كې آيت هم وارد دي او حديث هم وارد دي چې جرم نه دي بلكې اجوبه ده كه هغه هر وخت وي كه بعد الصلاة وي كه قبل الصلاة وي خو انفرادي دعاء نه اجتماعي دعاء اجوبه ده .

سنن سعيد بن منصور التفسير جلد ۵ صفحه ۳۳۱ :

حدثنا سعيد قال حدثنا ابو معشر عن محمد بن كعب قال قال موسى ربنا انك اتيت فرعون وملأه زينةً واموالاً في الحياة الدنيا الى قوله العذاب الاليم قال الله عزوجل قد اجيبت دعوتكما . قال كان موسى يدعو وهارون يؤمن والداعي والمؤمن شريكان .

دارنګې حلية الاولياء جلد ۲ صفحه ۲۲۶ :

حدثنا سليمان بن احمد حدثنا المقدام بن داؤد حدثنا حبيب كاتب مالك حدثنا هشام بن سعد حدثني زيد بن اسلم عن انس بن مالك قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ما اجتمع ثلاثة قط بدعوة .

دري به راغونډ نه شي په دعا کله هم .

الا كان حقاً على الله . مګر حق ده په خدای تعالی دا :

ان لا ترد ايديهم . لاسونه به يې تش نه پريږدي تعميم سره څه کوي .

ما اجتمع ثلاثة قط . دري به کله هم راغونډ نه شي .

تعميم دي او که نه دي صلاة غير صلاة په کې نشته کله به هم راغونډ نه شي نبي عليه السلام امت کې يادوي چې دري کسان به کله هم په دعاء راغونډ نه شي .

الا كان حقاً على الله ان لا ترد ايديهم . دا عام دي اوس د بعد الصلاة بهيئت الاجتماع . استثناء به دوي پيش کوي ددې عام نه چې پيش يې نه کړ دې عام کې داخل شو .

دارنګې حلية الاولياء جلد ۷ صفحه ۲۲۴ :

حدثنا ابو نصر محمد بن احمد بن ابراهيم الجرجاني حدثنا ابو القاسم بن عبيد القاضي حدثنا عبدالله بن قريش حدثنا بشر بن مرثد حدثنا اسماعيل بن يحيى حدثنا مسعر عن عطية عن ابي سعيد الخدري قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان الله تعالى يستحي من عبده اذا صلى في جماعة .

خدای تعالی حيا کوي د بنده نه چې په جمع مونځ وشي .

ثم يسأله حاجة . بيا ترې حاجت غواړي .

ان یتصرف خلق یقضیها . چې ودې کړخې ترد ې چې خدای تعالی ورته پوره کوي حاجت .

وایي چې په جمع مونځ وشي دعاء کوي خدای تعالی ته حیاء ورځي چې دعاء یې قبوله نه کړي پوره کوي یې ورته .

دارنګې الدعاء للطبراني جلد ۱ صفحه ۸۵:

حدثنا محمد بن عثمان بن ابي شيبة حدثنا احمد بن يونس حدثنا عمران بن زيد التغلبي عن خطاب بن عمر عن الحسن عن انس بن مالك رضي الله عنه قال خرجت مع رسول الله صلى الله عليه وسلم من البيت الى المسجد .

دې وایي رسول الله صلى الله عليه وسلم مبارک سره را روان ومه د کور نه مسجد ته رابهرشو .

وقوم . یو قوم دې .

في المسجد رافعي ايديهم . پورته کړي یې وه لاسونه .

يدعون الله عزوجل . یو قوم راغونډ دې په شریکه دعاء کوي .

فقال لي رسول الله صلى الله عليه وسلم هل ترى ما أرى بأيدي القوم . اى حضرت انس رضي الله عنه ښکاري درته هغه نور چې زه یې ګورم په لاسونو د قوم کې په دې کې چې کوم نور او رحمت وریږي تا ته ښکاریږي .

فقلت ما ترى في أيديهم . ما عرض وکړو ته څه شي ګوري په لاسونو ددوي کې .

فقال نور . نور ګورمه .

قلت . ما عرض وکړو .

ادع الله تعالى أن يريانيه . ما ته هم دعاء وکړه چې ما ته یې هم وښایي .

قال فدعا . نبي علیه السلام دعاء وکړه .

فرأيته . ما هم ولیدل هغه نور ما ولیدو چې کوم د صحابه وو په لاسونو کې راپریوتو .

فقال . بیا یې عرض وکړو .

یا انس استعجل بنا . را تیز شه .

حتی نشرك القوم . چې مونږ دې قوم سره شریک شو .

فاسرعت مع نبي الله ﷺ . نبي علیه السلام سره را تیز کړو مزل زمونږ .

فرفعنا ایدینا . مونږ هم لاسونه اوچت کړل .

هیئت اجتماعي دعاء کې مو ځان شریک کړو دا فضیلت د هیئت اجتماعي دعاء ده .

دارنګې البدایة والنهایة جلد ٦ صفحه ۳٦۱ : علاء بن عمر الحضرمي رضي الله عنه د بحرین په غزوه باندې روان دي دا ډیرې عظیمې دشتې دي نو په دې کې را روان دي په یو ځای کې دشته کې ننوتې دي او داسې ځای ته داخل شوې دي چې اوس حیران دي چې مخکې ځو او به به راشي او کنه که بیرته په شاه ځو نو هم دري یا څلور ورځې مزل دي او به خلاصیږي .

اتفاق یې په دې راغې چې راځي مخکې به لاړ شو چې کوم ځای ته ورسیدو چې بنه مخکې لاړل د اوبو پته ونه لګیدله او د دشتې د سر هم څه پته نه لګي او خلک هم نشته دي دوي روان دي نو چې اوبه ورسره خلاصې شوې اوس که بیرته واپس راځي نو مزل ډیر زیات دي که مخکې ځي د اوبو څه امکان نشته دي نو همدلته یې واړول او په خپلو کې یو بل ته وصیتونه وکړل که زه مړ شومه د فلاني قرض دي راباندې وغیره یو بل ته یې وصیتونه وکړل د تندې د لاسه دې حد ته ورسیدل .

علاء بن عمر الحضرمي امیر د قوم دي یو دم هغه جلال کې راغلو قوم یې راغونډ کړو وایي تاسو ولې په حقه نه یې راځي چې دعاء کوو دعاء یې شروع کړه .

نو صاحب د البدایة هغه ذکر کوي ورته ګوري :

ولم یقدروا منها علی بعیر واحد . یو یو په یوه اوبن کیناستې نه شو د کمزورې د لاسه .

فرکب الناس من الهم والغم مالا یحد ولا یوصف .

داسې غم او هم ته ورسیدل چې په وصف کې نه راځي ویلې نه شم درته .

وجعل بعضهم یوصي الی بعض فنادی منادي العلاء .

د امیر علاء بن عمر الحضرمي آواز کوونکي آواز وکړ .

فاجتمع الناس اليه فقال ايها الناس الستم المسلمين؟ الستم في سبيل الله؟ الستم انصار الله؟ قالوا بلى قال فابشروا فوالله لا يخذل الله من كان في مثل حالكم.

تاسو به خدای تعالی کله هم په خذلان کې وانه چوي.

ونودي بصلاة الصبح. د سحر د لمانځه آواز وشو يعنې آذان وشو.

حين طلع الفجر فصلى بالناس. مونځ يې وكړو خلكو ته.

فلما قضى الصلاة. كله چې مونځ خلاص شو.

جثا على ركبته. كيناسته په زنګنونو باندې.

وجثا الناس. خلک هم په زنګنونو كيناستل.

ونصب في الدعاء. ځان يې ستړې كړو په دعاء كې.

ورفع يديه. لاسونه يې اوچت كړل.

وفعل الناس مثله. او خلكو هم لاسونه اوچت كړل دا دعاء بهيئت الاجتماع ده د سحر لمونځ نه بعد لګيا دي دعاء كوي.

حتى طلعت الشمس. لمر پر راوختلو او دوي لګيا دي.

وجعل الناس ينظرون الى سراب الشمس يلمع مرة بعد اخرى وهو يجتهد في الدعاء. دې په دعاء كې لګيا دي كوشش كوي.

فلما بلغ الثالثة. كله چې دريمې دعاء ته ورسيدل.

ګوري درې دعاګانې كړې بهيئت الاجتماع شوې دي.

اذا قد خلق الله الى جانبهم غديراً عظيماً من الماء القراح.

ګوري چې سوچه خالصې صفا سوچه اوبه په خوا كې دشته بنائسته ډنډ خدای تعالی راپيدا كړو دا ددوي كرامت وه.

فمشى الناس اليه فشربوا واغتسلوا.

دعاء بهيت الاجتماع ثلاثاً دري ځل شوې ده.

دا خاصتاً رد په اهل حدیثو دي چې هغوي د فرضو نه پس هم دعاء بهیئت الاجتماع ته بدعت وايي او ناروايي ګڼي.

## المبحث الخامس : في تكرير الدعاء ثلاثاً :

صحیح مسلم معرب بیروت چاپ جلد ۵ صفحه ۱۷۹ مکي حالات ذکر کیږي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سجده باندې پروت دي کافران راغلل داوښې پیروان وغیره یې راوړل هغه واقعه ده:

ساجد ما یرفع رأسه حتی انطلق انسان فأخبر فاطمة. چا فاطمه بي بي خبره کړه.

وهي جويرية. هغه وړه ماشومه وه.

فطرحته عنه. څه یې چې د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په اوږو مبارکو اچولې ول هغه یې ترې وغورځول.

ثم اقبلت عليهم تشتمهم. فاطمه بي بي کفارو ته مخامخ شوه کنځل یې ورته کول.

فلما قضی النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صلاته. کله چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مونځ خلاص کړو.

رفع صوته. آوازیې اوچت کړو.

ثم دعا عليهم. ښیري یې شروع کړي مونځ شوې د مانځه پسې دعاء او ښیري دي.

وكان. وه طریقه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ:

اذا دعا دعا ثلاثاً. کله به یې چې دعاء کوله دري دعاګانې به یې کولې.

واذا سأل سأل ثلاثاً. کله چې به یې سوال کولو دري سوالونه به یې کول.

اذا دعا دعا ثلاثاً. ابي داؤد کې د ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روایت دادی چا تپوس د دعاء کړې چې دعاء څه ته وايي هغه وايي دعاء دې ته وايي:

ان تقنع بيديك عند الصدرك ثم تمسح بهما على وجهك. لاسونه به د سینې په اندازه اوچت کړي څه به وايي بیا به یې په مخ باندې راکاږي دا دعاء ده.

او یا دارنګې عبارت دی:

ان ترفع يديك حذو منكبيك أو نحوهما.

نو شریعت کې د دعاء هیئت دغه دي ګوري چې تاسو ته صحابي په حدیث مبارک کې حکایت وکړي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ صلی رکعتین دوه رکعته لمونځ یې وکړو اوس دې تا ته ونه وایي چې اودس یې هم ورته کړې وه قبلې ته مخامخ وه جامې یې هم پاکې وې او مکان هم پاک وه الله اکبر هم ویلې سورة فاتحه یې هم لوستلې نو دې ویلو ته خو ضرورت نه وي کنه خپله سړي پو هیږي چې هیئت د لمونځ څه دي همغه شان یې کړي د صلی رکعتین نه معلومیږي کنه.

کله چې راوي د حدیث ووایي چې دعا نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دعاء وکړه او هیئت د دعاء تاسو ته له احادیثو نه ثابتوي چې په تشهد به کیني قبلې ته به کیني اودس به دې وي لاسونه به دې د سینې په اندازه اوچتوي په مخ به یې راکاږي که اوس رفع د ایدیو په کې صحابي ذکر کړه او که ذکر یې نه کړه دعاء ده داسې چې سړي په کې لاسونه اوچتوي چې لاسونه اوچت نه شي دعاء نه ده هیئت د دعاء نه دي برابر شوې نو دا ډیر کم فهم انسان کار دي چې وایي فلاني روایت کې دعاء راغله خو رفع د ایدیو نه ده راغلې.

اوس به رفع د ایدیو ما ته ښایي دا خو محض تعصب دي د دعاء هیئت بدون د رفع د ایدیو نه څوک ښودلې نه شي هغه دعاء چې دعاء مجضه وي او خارج له لمانځه نه وي هر چې داخل د لمانځه دي د هغې صور رفع د ایدیو حرکاتو لره مستلزمه ده په یدینو باندې له دې وجې نه ترک شوې ده نو چې وي ویل:

اذا دعا دعا ثلاثا. دعاء به یې کوله دري دعاګانې به یې کولې اوس چې ما نه څوک حکایت کوي چې فلاني مولوي صاحب پسې مې لمونځ وکړو دري دعاګانې وکړي نو هغه د رفع د ایدیو ذکر ما ته نه کوي خلک پو هیږي چې ده لاس اوچت کړې دي په مخ یې راښکلي دي ځکه هیئت د دعاء دغه دي په هره تکره کې خو تفصیل څوک نه کوي او که داسې تفصیل غواړي نو بیا به یوه مسئله هم ثابته نه کړي لکه مخکې ما تاسو ته وویل چې د سحر د سنتو متعلق زه تپوس کومه چې د سحر په سنتو کې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په اول رکعت دوه سجدې کړي که دري یې کړي او که یوه سجده یې کړې ده که ته وایي چې دوه سجدې یې کړي نو وښایه نه شي ښودلې سوال له دې نه چې:

صلی رکعتین . خو د هغه دوه رکعتونو هیئت مونږ ته معلوم دي چې هر رکعت کې یوه رکوع او دوه سجدې کیږي دغه شان یې کړې دي نو دغه شان چې حدیث مبارک کې راغلل چې دعا رفع د ایدیو په کې خپله راغله دوي بیا څه وایي نه ددې دا مقصد دي چې رب اغفر لي رب اغفر لي نو لالا دا خو ددې معنی ده چې اذا سأل سأل ثلاثاً اذا دعا دعا ثلاثاً هغې ته معنی پیدا کړه دعاء یې درې کړې په هر دعاء کې درې سوالونه کړي هغه سوال به یې درې ځل مکرره وو .

قال اللهم علیك بقریش ثلاث مرات .

ګوري داد سأل ثلاثاً د هغې تفصیل دي .

نو اذا دعا دعا ثلاثاً دې نه استدلال دي چې دعاء درې ځل په کار ده دغه ځای باندې منهاج وګوري امام نووي صاحب لیکي :

فیه استحباب تکریر الدعاء ثلاثاً .

په دې حدیث کې ثبوت ددې دي چې دعاء به درې ځل مکررېږي .
دارنګې صحیح مسلم معرب بیروت چاپ جلد ۷ صفحه ۱۴ :

حدثنا ابو کریب حدثنا ابن نمیر عن هشام عن ابیه عن عائشة قالت سحر رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یهودي من یهود بني زُریق یقال له لبید بن الأعصم قالت حتی کان رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یخیل الیه انه یفعل الشيء وما یفعله .

دا هغه د سحر واقعه ده .

حتی اذا کان ذات یوم . یوه ورځ شوه .

او ذات لیلة دعا رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثم دعا ثم دعا . دعاء یې وکړه ، بیا یې دعاء وکړه ، بیا یې دعاء وکړه په دغه شپه ورته فرښتې راغلې او هغه سحر ختم شو .
همدغه روایت کې مذکور دي اوس که ته وایې چې دعا راغله خو رفع د ایدیو نه ده راغلې .

صحیح مسلم جلد ۳ صفحه ۶۴ ، عائشه بي بي فرمايي ، نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ فرمايي ، نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ زما په نمبر کې وه د شپې رانه بهر شو دې سره دا غم پيدا شو چې د بلې بي بي کوټې ته نه وي تللې نيغه پسې رابهر شوه يو يو کوټه يې وکتله په هغې کې نشته بهر ته پسې راووتله بهر هم نشته ده بس پوه شوه چې جنت البقيع د صحابه کرامو مقبرې ته به تللې وي مقبرې ته پسې عائشه بي بي لاړه نو هغه واقعه را اخلي :

فجعلت درعي في رأسي واختمرت . ځان مې پټ کړو په خمار کې .

وتقنعت ازاري ثم انطلقت على اثره حتى جاء البقيع فقام فأطال القيام ثم رفع يديه ثلاث مرات . بيا يې دري ځل لاسونه اوچت کړل .

ثم انحرف فانحرفت فاسرع فاسرعت فهرول فهرولت . هغه راپسې رامنډه ما هم تري منډه کړه .

فاحضر فاحضرت فسبقته . زه ترې مخکې شوم .

فدخلت فليس الا ان اضطجعت . هغه چې رادننه شو ما ډډه وهلې وه اوږده واقعه ده نو دې ځای کې رفع د ايديو ثلاث مرات راغله دعاء کې اوچتول د لاسونو دري ځل ثابت شو .

امين الله بشاوري وهابي نه استفتاء شوې دري دعاګانې څنګه دي نو جواب يې ورکړې دي وايي چې اذا دعا دعا ثلاثاً معنى دا چې رب اغفر لي ، رب اغفر لي ، رب اغفر لي ، دې کې د لاس اوچتول نه دي راغلې بيا ترې تپوس دا دويم حديث کې شوې چې دې روايت کې خو رفع د ايديو راغلي ده دري ځل وايي دا په مقبره کې جائز دي خو په مسجد کې ناروا دي دا خو مجتهد صاحب دي کنه دده مقلدين شي چې د جهنم په غاړه مو ودروي نو دا دده اجتهاد دي چې په هديره کې يو شي جائز شي نو په مسجد کې ناجائز شي دعاء ده چې هلته ثابته شوه دري ځل نو اوس به بل ځای کې به ناروا وي بل متعصب به پيدا شي هغه به وايي چې په مدينه منوره جنت البقيع کې رفع د ايديو ثابته ده خو د رحمان بابا په هديره کې ناروا ده نو بيا به ورته دلته د نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ نه ثبوت له کومه کړو .

داهسې تعصبات دي او ضد ونه دي تمکينات د عباداتو لپاره د شرائطو نه ، نه وي نبي عَلَيْهِالسَّلَامُ نه يو عمل يو مکان کې ثابت شو هغه بيا داسې نه ده چې په بل مکان کې به هغه

عمل ناروا وي بيا په بل ځای کې به هم هغه عمل همغه حکم لري نو رفع د ايديو په دعاء کې ثابته شوه دري کرته امام نووي رَحِمَهُ اللهُ دلته تکرير د دعاء ثلاثاً او رفع د ايديو في الدعاء ثلاثاً ثابتوي .

همدغه ځای باندې په منهاج کې خبره کوي حال دادی بشاوري دلته دا جواب کړي چې نه دا په هديره کې شوې ده په مسجد کې ناروا بدعت ده او بيا چې په هديره کې بو ځل لاس اوچتوي نو لاس دې په چوکه وهي او بدعتي درته وايي بيا يې يو ځل هم نه مني هغه بل اړخ ته يې بيا فتوی څه ده چې هديره کې لاس اوچتول روا دي هغه کله روا ګڼي بيا نو هديره کې يو ځل رفع د ايديو نه مني او چې دلته ونختل وايي دا په هديره کې اوچت شوې .

دارنګې ابي داؤد جلد ۱ صفحه ۵۶۱ :

**حدثنا احمد بن علي بن سويد السدوسي حدثنا ابوداؤد عن اسرائيل عن ابي اسحاق عن عمرو بن ميمون عن عبدالله ان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كان يعجبه ان يدعو ثلاثاً ويستغفر ثلاثاً .**

محبوبه ورته دا وه چې دعا دري وکړي او دارنګې بخښني دري وغواړي .

آخره کې د فيض الباري عبارت درته ذکر کوم د ديوبند د علماء چې دوي وايي د ديوبند علماء دې ته بدعت وايي غلطه خبره کوي داد شاه انور شاه صاحب دي په فيض الباري جلد ۲ صفحه ۳۷۵ کې وايي :

**ومع ذلك وردت فيه ترغيبات قولية** . د قولي روایاتو ترغيبات په دعا کې ډيرزيات راغلي دي .

**والامر في مثله ان لا يحكم عليه بالبدعة** . امر په مثل د داسې څيزونو کې چې قولي احاديث په کې وي دا دې چې په هغې دې حکم د بدعت ونه شي .

**فهذه الأدعية في زماننا ليست بسنة بمعنى ثبوتها عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بالفعل** . په دې معنی چې بالفعل دغه دعاء مسنونه شي ثابته نه ده .

**وليست ببدعة** . بدعت هم نه ده .

بمعنى عدم اصلها في الدين . چې په دين کې اصل نه لري .

والوجه فيه ما ذكرته في رسالتي نيل الفرقدين ان اكثر دعاء النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كان على شاكلة الذكر لا يزال لسانه رطبا به ويبسطه على الحالات المتواردة على الانسان من الذين يذكرون الله قياماً وقعوداً وعلى جنوبهم ويتفكرون في خلق السموات والارض ومثل هذا في دوام الذكر على الاطوار لا ينبغي له ان يقصر امره على الرفع .

دغه شان روايات حملول په دې چې مرفوع روايت په کې غوارم نه دي په کار چې هر ځای کې دې مرفوع روايت وغواړي .

فانه حالة خاصة لمقصد جزئي وهو دعاء المسألة فان ذقت هذا النفس عن كرب ضاق بها الصدر لا ان الرفع بدعة فقد هدى اليه في قوليات كثيرة وفعله بعد الصلاة قليلاً .

رفع د ايديو يادوي چې ته دلته رفع د ايديو بدعت وګڼې وايي داسې نه ده نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ رفع د ايډيو د مانځه نه بعد قليله کړې ده خو ليکن دې کې قولي روايات ډير زيات دي .

وهكذا شأنه في باب الأذكار والاوراد اختار لنفسه ما اختاره الله له وبقي اشياء رغب فيها للأمة فان التزم احدمنا الدعاء بعد الصلاة برفع اليد فقد عمل بما رغب فيه وإن لم يكثره بنفسه .

که چيرته په ځان چا لازمه کړه يو کس دعا له مانځه نه وروسته په لاس اوچتولو سره نو ده عمل وکړو په هغه احاديثو باندې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ترغيبات قولي په کې پيش کړې دي اګر که بالفعل خپله به يې ډيره نه وي کړي خو قولي روايات په کې ډير دي .

ګوري التزام راغې دلته الزام ته دي التزام بدعت نه وي دوي کله وايي دعاء بعد السنة لازمي ګڼل که څوک يې نه کوي هغه رټل دا څنګه دي دعاء بعد السنة يا هر يو څيز چې وي منذوباتو او مستحباتو نه هغه لازم ګڼل په دوه قسمه دي :

يو لازمول د هغې دي په ځان باندې او بل لازمول د هغې دي په غير باندې لازمول د هغې په ځان باندې د هغې نه تعبير په التزام کيږي افتعال باب لازمي دي ، او لازمول په غير باندې د هغې نه تعبير په الزام کيږي .

التزام د مالم یلتزم بدعت نه دي دا معروفه ده په ژبو د خلکو باندې چې اصولو لیکلي دي چې التزام د ما لم یلزم بدعت دي التزام د ما لم یلزم بدعت نه دي الزام د ما لم یلزم بدعت دي په بل چا لازمول د هغه کار چې لازم نه وي بدعت ده ځکه دا لازم ثابتول په غیر درجه د وجوب او د فرض ده او دا حق د شارع دي ته نو څوک یې چې په غیر یو شي لازموي.

لکه ما مخکې دا خبره خلاصه کړې وه چې غیر شارع شارع ګرځي له دغې وجې نه بل څوک الزام نه شي کولې او هر چې التزام دي دا جائز دي التزام د ما لم یلزم بدعت نه دي دلیل په دې باندې تمام نذور او وفاء په نذر باندې.

لکه مثلاً زه اوس وایمه چې څه صبا ته دا کار زما که وشو چیرته نو په ما به چیلي لازم وي زه به یې حلالوم بیا راباندې واجب شو کنه التزام د ما لم یلزم په دغه ورځ باندې چیلي په ما لازم نه وه مستحب خبره وه او ما په ځان لازم کړه تمام نذرونو کې التزام د ما لم یلزم دي.

زمونږ فقهاء لیکي چې کله راغلي جمعې ته لږ وخت پاتې ده نو ستا په دې مسجد کې ناسته د جمعې تر وخت او اداء د صلاة پورې مستحبه ده خو که تا وویل چې زه به تر مانځه پورې معتکف یمه نه به اوځم وایي تا ته اجر د واجبو ملاویږي ځکه تا التزام د ما لم یلزم وکړو تا باندې خو دلته دا ناسته لازمه نه وه او تا په ځان لازمه کړه نو التزام د ما لم یلزم بدعت نه دي بلکې جائز دي او ترغیبات په کې شته:

**احب الاعمال الی الله تعالی ادومها وان قل.**

کوم چې دائمي کیږي استمراري کیږي دا عمل خدای تعالی ته ډیر محبوب وي اګر که لږ وي لږ عمل دې وي د رتبې په لحاظ مستحب شو لږ عمل دې وي د عدد په لحاظ رکعات دي قلیل وي خو دائم دي وشي نو په ځان چې څوک کوم شي لازموي هغه بدعت نه دي او هر چې دوام استمرار سره یې کوي لازم یې نه ګڼي دا خو احب الاعمال الی الله دي.

مونږ چې دعا بعد السنة کوو نو نه مو التزام په خپل ځان کړي او نه مو الزام په غیر کړي دي دا چې التزام مو په ځان نه دي کړې دلیل څه شي دي واجب یې نه ګڼو مونږ یې مستحب ګڼو که دا مونږ التزام کولې دې ته به مونږ واجب ویلې مونږ به نذر کړې واي په ځان باندې نو دا التزام نه دي بلکې عملي دائمي استمراري کوو، او عمل دائمي استمراري د مستحبو د روایت د مسلم نه ثابت دي:

احب الاعمال إلى الله أدومها.

او الزام هم نه کېږو ځکه چې زمونږ د جمعې لمونځ او نور لمونځونه په احنافو کې چې څومره قائلین د دعاء بعد السنة دي زما نه سر سخته په کې نشته دي زه په کې ډېر کلک یمه او زما په مسجد کې دا طالبان او سیږي دوي ګواه دي چې کله مونځ وشي څومره خلک وي او چې کله دعاء کیږي نو څومره خلک وي یعنې زیات خلک له دعاء مخکې ځي نو ما په چا باندې رد کړې دي او څوک مې رټلي دي ولې ځکه ما ته معلومه ده چې دوي دعاء مني.

دا زما مقتدیان دي دعاء جائز ګڼي چې جائزې ګڼي مسئله د اتیان او ترک اتیان راغله کول مستحب نه کول جائز د جمعې په ورځ زمونږ د اهلسنت مساجد ډک وي په دعاء کې یو څو صفه پاتې وي دا دلیل د دې دي چې مونږ الزام نه دي کړي.

یوه خبره ده چې بعضې وخت یو مستحب څیز من شعار اهل السنة شي او ترک د مستحب له شعار د من اهل زیغ نه شي نو هغه جزیه جدا ده چې نن صبا دعاء بعد السنة د اهل سنت احنافو نښه ده او د سنتو پسې دعاء نه کول د وهابیانو اشاعتیانو مودودیانو جماعة المسلمین نښه ده.

چې ته په یو نامعلومه مسجد کې مونځ وکړې او امام دعاء ونه کړي دلیل د څه شي دي چې دا پنجپیري وهابي دي کنه نښه د هغوي ګرځیدلې ده نو چې هر کله د غلطو خلکو نښه ترک مستحب وګرځیده.

اوس به د دغې ترک مستحب نه داسې ځان ساتي لکه حرامو نه چې ځان ساتي او چې هر کله اتیان په دعا بعد السنة شعار د اهل سنت احنافو وګرځیده نو اتیان په دې مستحبو دومره په کلکه کوي لکه فرض چې سړي په کلکه کوي له دې وجې نه چې دا شعارات او نښو شوې.

دلته اوس معلومیږي چې دا اهل سنت دي او یا د اهل زیغ نه دي نو دوام استمرار پر کوي التزام په ځان هم نه کوو خو بیا هم دوام استمرار کول په کار دي.

او الزامات على الغیر عقیده مونږ نه ساتو الزام په غیر بیا بدعت لره مفضي کیږ هغې وجه دا وي چې غیر شارع شارع ګڼلې شي:

بالفعل دغه دعا زمونږ فقهاء کې بعضې کتابونو را اخیستې ده لکه حلب الکبیر چې کبیري ورته وایي صفحه ۳۴۱ ده نور الایضاح را اخیستي په صفحه ۸۰ باندې ، خلاصة الفتاوی را اخیستې جلد ۱ صفحه ۱۰۵ باندې ، شرح الیاس را اخیستې صفحه ۲۵۱ ، رد المختار را اخیستې جلد ۱ صفحه ۴۹۴، عیني را ایخستې جلد ٦ صفحه ۱۲۲.

د بدعت حسنه لپاره د ما رآه المؤمنون حسن فهو عند الله حسن نه استدلال کیدې شي او دارنګې د من سن سُنة حسنةً فله اجرها واجر من عمل بها نه استدلال کیدې شي .

دا عام مسلمانان دومره شرقاً غرباً په دعاء بعد السنة باندې لګیا وه شُذر نُذر ددې دور پیدا شول دوي ترې نه واړول نو دا دومره مسلمانان چې په دې کار راغونډیږي او کار وي هم حسن د اصولو مخالف هم نه وي او بدعت هغه بدعت مذموم وي چې په قرون ثلاثه کې اصل ونه لري او رافع للسنة وي چې ددغې نوي کار په کولو باندې یو سنت ترک کیږي دا بیا بدعت مذموم دي ځکه چې زوریې سنتو ته ورځي او سنت پرې خرابیږي او که داسې کار حسن وي چې په هغې کې سنتو ته څه نقصان نه رسیږي سنت پرې نه خرابیږي که دا بدعت شي هم لفظي بدعت به وي بدعت حسنه به وي بیا .



بسم اللہ الرحمن الرحیم



# علماء احناف

# علماء حق

خادم عالمزیب الحنفی

+923452131285